# وریښمین کاڼي

## شعري ټولګه

ویناوال

# عبدالرحمان غضري

WWW.SAMSOOR.COM

### اهدأ

هغو ویرجنو سترګو ته چې ټول عمریې د ښو په څوکو دا وښکو جنازې وړیې دي

عبدالرحمان غضري

وریښمین کاڼي

# ځوان شاعر عبدالرحمن غضري

زه له غضري سره يوازې د راډيو له لارې پېژنم. ده راته ويلي دي چې د پکتيکا او سېدونکی دی او عمر يې يو ديرشو کالو په شاوخوا کې دی. زه په دې لا هم نه پوهېږم چې د غضري معنی به څه وی. خودونه ضرور ويلای سم چې غضري د پښتو ژبې د ځوان کول له هغو شاعرانو څخه دی چې که خدای کول نوم به يې د پښتو ژبې د شعر له تاريخ سره ثبت سي.

غضر په ډېر کم عمر کې ډېر پوخ غزل ليکی. البته دا کار زموږ په ځوانی کې چندانی معمول نه وو او چا به چې پاخه شعرونه ليکل نو په عمر به هم پوخ وو او چې سړي به ليدی نو په زړه کې به يې ويل چې ياره د دې انډيوال هم له ژونديو سره چندانی ډېری شپې پاته نه دي. خو نن ورځ په پښتو ژبه کی دونه ځوان شاعران پيدا سوي دي چې که د سړي ستر گي په مړې نه شي نو لږترلږه د پخوا په څېر زلخوړي خونه پاتېږی.

غضري زيات و کم درې کاله مخکې د سعودی عربستان څخه زموږ د امريکا ږغ د پښتو د شعر او شاعری پروګرام ته ټلفون وکړ. ځان يې معرفی کړ، يو غزل يې ولووست. ښايسته غزل وو، بې اندازې مې خوښ سو. له هغې ورځې وروسته دا دی درې کاله تېر سوي دي او غضري صاحب کله کله ټلفون کوی، او خپل شعرونه چې زياتره غزل وي او يو نيم ازاد نظمونه هم پکښې وي راته لولي.

دا دی اوس يې د خپلو اشعارو يوه مجموعه، چې په اوسنی اصطلاح ټولګه ورته ويله کېږی، ترتيب کړې او چاپ ته تياره کړې ده. طبيعی خبره ده چې ډېر زيات نظمونه او غزلي يې ماته نوي دي. کلام يې پوره درونداو پوخ دی. د ځوانی مستي او نشه دو را يه پکښی خرګنده ده، او چې سړی په دغه سن کې شعر ليکی او پوخ يې ليکی نو بايد چې زياتره يې مضمون له دغه راز رنګينو او شوخو کلماتو ډک وي.

له تورو څــونـــو دي را الـــوتـــې زمـــا په لوري
ځان يې عنبرو کی مينځلی وو ورمـــــې غــړېــدې
خدای دې لرې څومره هوښياري وې ستا شوخی سترګي
هم يې غماز څـــاره هـــم مـــاته پسخېدې غړېدې
لېوني حسن دي د لمر په ستـــرګـــه وار کـــړی وو

وريښمين کاڼي

عبدالرحمان غضري

زرینی وړانګي دي په غېږ کی تـو یېدي غــړېـــدي
ښه مي په زړه دي چی اول ځل یـــې زمــانــوم اخیسته
په پستو شونډو دي بې درېغه انــد ېښنـــې غــړېدي
په سپین باړخو چی دی را توی شوې درته څه یې ویل
چی غضری درڅخه تلم او ښکي دي مــړې غــړېـدي

د غضری د غزلونو او شعرونو مضمون البته یوازي دغه راز شوخ او د مینی له اوره ډک کلمات نه جوړوی. په پردی مېنه کی یې د خپل اولس خلک هېر کړي نه دي، د پښتو او پښتنو سره یې مینه تازه ساتلې ده او د ده په قول لا یې په په رګونو کی د وینو په ځای اور بهېږی.

داچی پراته دي په میدان خواره واره ســـرونه
لکه چی بیا نذرانه شوي پښــتانـــه ســرونه
قاتل پردی دی لیکن غشی یې ضرور اشـــنا دي
ځکه په ښه لګېدلي ټول درانـــــه ســرونـه
توره دی مه پلوره لاشته د پښتـــنو غــلیــمان
په دې به ژغورو په نړۍ کی دا پنـــځه سرونه
راځۍ دا سپینی ږیری وستایو په سپــینو زړونو
خدایږو که راشی بیا په نویو کــــی زاړه سرونه
بې له پښتونه دا خصلت وایه نړۍ کـــــي د چا
زامــن په دار خېژوي ژغوري مېلمانه ســرونــه
دلتــه رګونو کی د وینو پـــه ځــای اوربهـــېږی
ســـاړه به نه شي دا له شوره ډک تـــاوده سرونه

د غضری شعر ، لکه څرنګه چی مخکی می وویل ښه پوخ دی، او که دی په عمر پوخ هم سی ګومان نه کوم چی په پوخوالي کی به یې شک وکړي او یا به یې پر چاپولو پښېمانه سي. د پوخوالي ترڅنګ پوره رواني لري. په نظم کی یې سېلاب او قافیه دونه دقیق رعایت کړي دي چی د ویلو او خو ځای پکښی نسته. یوازي په رواني بسیا نه دی او د ډېرو خوږو او ښاسیتو ترکیبونو څخه یې کار اخیستی دی.

وریښمین کاڼي

عبدالرحمان غضري

د لمر په پیر می درته کښلی د سندرو تعویذ
په سوراو تال کی یې گنډم گوره چی ولاړه نه شې
ژړ مازیگر ستا د منگي د اوبو غړپ کی څښم
دا توره تنده ماتوم گوره چی ولاړه نه شې.

زه به نور د غضری د شعر په باب څه ولیکم. څه چی زه باید ولیکم د ده شعر یې پخپله ښیی او هر ښایسته ترکیب یې سړي ته له لیری لاس ښوروی. زه یقین لرم چی غضری به د شعر لمن خوشی نه کړي ځکه زه چی کله د ده نظمونه لولم د شعر سره د ده ژوره مینه له ورایه راته ښکاری. د دونه ژوری مینی پرېښودل څه اسانه کار نه دی ، او زه یوازي دعا ورته کوم چی خدای پاک دي اوږد عمر ورکړي چی د پښتو د شعر د سینگارولو د پاره خپل رنگین قلم همداسی ځغلنده وساتی.

عبدالباري جهاني
واشنگټن ډی سي
۳-۱۴-۲۰۰۷

وریښمین کاڼي

عبدالرحمان غضري

# وريښمين كاڼي

د ښاغلي عبدالرحمان عضري شاعري د شعر تلاش نه دی ولې چې شعر يې د خيال ، جذبې ،فكر او شعور
هغه ټول جماليات لري چې د يوه ښه شعر د افاقيت او تل پاتې لپار لازم او ملزوم ګڼل كيږي .دا برخه د شاعر
هغه وخت نصيب كيږي چې د شاعر خيال ،فكر شعور ،جذبه او خلوص يو برابر وي .دا سي شاعري د خپلې
ژورتيا له امله د خلكو په زړونو كې ځای پيدا كوي .شاعري د روح تسكين او غزل د شاعرۍ ژوند دی. كه
د غضري صاحب شاعرۍ ته ځير شو له هر بيت نه يې د يوې خوږې ټپې خوند اخيستی شو. د ښاغلي
غضري صاحب د بيان ژبه ډيره خوږه او راونه ده .مضمون افرښي او تخيل يې ډير ښه دی .او تلميح يې په
زړونو كې ګوتې وهي. د قافيې، رديف او ګرامر له لحاظه يې شعر بډايه او غني دی .په شاعرۍ كې يې د
مينې ورمې ډېرې اغيزناكې دي .د بيتونو داخلي موسقيت او وزم يې ډير په زړه پوري دی .الفاظو ته يې
هنري جامې وراغوستې دي اونوي مفاهيم يې په
منطقي او ښه بڼه وړاندي كړي دي .مينه يې ستايلې او په مينه ،مينه د خپل ولس په زخمونو پټۍ او مرهم
ږدي.

ښاعلی غضري صاحب ديو داسې طبيب رول لوبوي چې له خپلو روحي مريضانو سره په مينه ، مينه د هغه
په هغه ستونزه ځان پوهوي چې مريض ته ترې مريضې ور پيښه شوې ده .داسي مريض ته د دواء نه د
تسليات ډير ضرورت وي .د ښاعلي غضري صاحب اشعار له شغار نه پاک او موضوعات يې افاقي او
تلپاتې دي .كه څه هم ښاغلی عضري د افغانستان د ورستی تراژيدۍ او جنګ همزولی دی. خو بيا هم د
ښې شعري قريحې او انځورګرۍ له امله يې خيال او فكر د شعر مينه وال له ګوتې نيسې او د قاينات
د ښكلا ګانو مشاهدې ته يې بيا يئ. او شعر يې د ښه شعريت ،تغزل او رنګينۍ تر څنګ ښه پيغام هم لري
كه يې د بيلګې په ډول د غزل څو بيتونو ته تم شو و به وينو چې څومره ځلونه ،او خوندورتوب يې د معنوي
او كيفي خوندونود څكنې لپاره په هنري ذوق وربښلی دی.

د لمرپه اننـــګومې پښځـــــاووخوتښتيـــــــــــده

وريښمين كاڼي

عبدالرحمان غضري

تصویرمې دې له وړانـګو جوړاوو خو تښتیـــــــــده
بیګادې ټوله شپه د سپین روخسار ډیوې ته ناست وم
یو خیـــــال مې ستا په حسن لمباوو خو تښتیــــده
یو ه څړیـــکه لکه ستا د ښو ستن ورپه کې رغښتــه
پرهرکه مـــې هرڅـــوراټـولاوو خو تښتیـــــده
تناکـــې دزړه ګي مې ترلیمــــوورپســـې راغلې
یو ښکلي یې په سترګو مچـــاوو خو تښتیــــده
ساقـــي په کې جو هرد خلـــوص نه وو نښتیځــــلي
خمـــارمې په خمونومتـــاوو خو تښتیــــــده
بس ورک وم غضري د یو خاموش شورپه څپوکـــې
جنون مې په مستـــۍ کې غرقـاوو خو تښتیـــــده

لکه چې تاسو مخکې هم ولوست چې غضري صاحب د افغانستان دورستۍ تراژیدۍ (غمیزې) همزولی دی خود ښه هنري فن او نازکخیالۍ له امله یې د افغانستان ددې لوې غمیزې انځورګرۍ مکمله تابلو پدې څو بیتونو کې لیدلی شئ.

څنګه سندره شم شپیلۍ د جانان اوراختـــــې
زړونه لمبې وهي خـولګۍ د جانان اوراختــې
داو ښکو ستوري یې په سروکسیوکې وخوټیدل
غزل بې موره شوه ځوانۍ د جانان اوراختــــې
دلته سنګسار دی د هینــــداروغیږله وینوډکه
هلته ټپـــه سوځي کیږدۍ د جانـان اوراختـــې
او یا داچې:
نورڅه دې غضـــري ستاد ویجاړخیال په البم کې
سم وران افغانستان یې د هدرې غوندې ښکاریږي

غضري به ولې ګیله من نه وي د وخت ناخولو د دوستانو په جامه کې د غه تور خلک راوپېژنده. او غضري

د تجربې او مشاهدې په بنا د دغو خلکودا رياکارانه خبرې داسې راښايي او غواړي چې نور لدې وران کاروخلکو نه بيل شو :

ځو مره ساده يم چې څوک لاس راکړي په دوست يې گڼم
دلارې مـــل ترهغـــې مل وي چې څـــــولار بيليږي
ملگرو اوس چې د شيـــطان په رنــگ رنگيږي خلــک
ښکلـــي ترې بيل کـــړئ که په تــوره که په داربيـــليږي

غضري صاحب دغزل تر څنگ دشعر په نورو اصنافو اوصنعتونو کې هم طبع زمايي کړي ده چې زما په اند ښه اهنگ اوشرنگ پکې دی او لوستونکي پرې د خپل ذوق نيلی ځغلولی شي دنمونې په طور يې د شعر دا بيلگه وگورئ:

لاروپه که شاعريې
نوښکلاخودې خوښيږي
راشه ښکلي توري درکړم
زمالمن له توريوډکه
خومانه دي رنگولي
ته شاعريې تې دروا خله
په کې پوکړه سره رنگونه
ستااحساس خوښه ماهردی
په کې وکره ترزونه
ستادسرتر وينښتوډيردي
واخله ستانصيب نيولي
څه تپې څه تراني کړه
څه گلونه څه خالونه
څه پيلوزي کړه چې بل شي
څه دوړانگوا ميلونه
لاروپه لاوخت شته دی
لاوس هم ناوخته نه دی

وريښمين کاڼي

عبدالرحمان غضري

دا تاوده توري درواخله
سړې وينې پرې تودې کړه
څه غزلې څه نظمونه
له چاجوړې قصيدې کړه
دا دستورو ځانګووينې
د سپرې. وطن درښيم
دې کې هم تپه تياره وه
دا زرين ستوري يو نه وو
چې شاعرورباندي واوښت
سپيره توري کړه ګلونه
دمدارپه غيرکې کيښودل
دانه دانه خالونه

که دغضري صاحب په شعري فن او هنريو کتاب خبرې هم وليکم بيا هم کمې دي خوډيرې خبرې د خداى(ج) او رسول (ص)ښې وي خو دومره ضرور وايم چې غضري صاحب داوسني عصر اوزمان هغه نازکخيال او انځورګر شاعردی. چې کوم خيال نن ده په کومو الفاظو کې نغښتی دی که نيمه پېړۍ ورسته يې هم کوم شاعر په خپلو شعرونو کې پنځوي نو ګومان نه کوم چې له غضري صاحب نه به يې ښه بيان کړي. او په وياړ سره وايم چې غضري صاحب به د ځينو نورو شاعرانو په شان تر پيړيو او پيړيو د خپل پياوړي شعر له امله ژوندی وي. او نام خدا قلم د يې نور هم خداى(ج) ښيرازه لري .

په احترام او مينه
بختيار ځدران سعودي عرب تبوک
١١/٢/٢٠٠٧

وريښمين کاڼي

عبدالرحمان غضري

# یادونه

دازمالمړی شعري ټولګه ده چې د یوکتاب په بڼه ستاسو محترمو
لاس ته دررسیږي
ښایې چې زما په شعرونوکې به هغه توان او وړتیانه وی چې ستاسو
دزوق تنده ورباندي ماته شي کلونه وشو چې ځینوملګرو له ماڅخه غوښتنه کوله
چې زه خپل شعرونه راټول کړم اودشعرمینه والته یې دیو کتاب په بڼه ورسوم
خو خدای شته زه دې کارته زړه نازړه وم نه پوهیږم چې ولې
خواوس دادی دخپل ګران اوزړه ته رانیزدې ملګري ښاغلی
بختیار ځدراڼ په غوښتنه مې دې ته زړه وتاړه چې دټولو ملګرو دامشترکه هیله ترسره کړم
ډیرخه نه لیکم په پای کې له هغوټولو دوستانو څخه مننه کوم چاچې زه دې کارته تشویق کړی یم
اوله ماسره یې په دې لارکې له پیرزوینو ډکې مرستې کړیې
خصوصاًله خپل محترم مشراوسترشاعرعبدالباري جهاني صاحب څخه
چې بیا بیا یې ماته لارښودنې کړیې
هم دراز له خپل ګران اوزړه ته رانیزدې ملګري بختیار ځدراڼ نه ممنون یم
چې په خپل ټول زیاراوزحمت یې زماشعرونه راټول اوتاسو محترموته یې
دیوکتاب په شکل درورسول

په احترام عبدالرحمان غضري
سعودی عرب ساجر
۱۱/۲/۲۰۰۷

وریښمین کاڼي

عبدالرحمان غضري

# انځور

ماخپله روح لوستی ستانوم پــکې جانان وخاته
ښکلې د استاد حسن ګل زمـــا په ګریوان وخاته

نه مې کعبې ته روایت شته نه جمات ته تلای شم
ستاد کافر اوربـل انځـــور زما په ایمان وخاته

چې مې لید لی نه و خدای ږو ورتــه زړه نازړه وم
ستا محبت خو خوږ زبور او سپین قــران وخاته

رقیبه نور دې زمـا د زړه هستۍ ته لاره نه شته
د زړه په سمڅو کې مـې لعل د بدخشان وخاته

نور به مې زړه لکه د سترې جـرس نه غږوم
د قسمت ستوری د منزل په کهکشان وخـاتـه

ښو ویشتلم خولیمو دې غیـږ کـې ونیو مه
د درد په ځاله کې یو خوږ غوندې درمـان وخاته

غضري خیال به دې د ښکلیو په لیمو کې ګرزي
که د عرفان لمر په کاله کې د افـغـان وخاته
1385/2/13

# غزل

ستا د مړو سترګو په کونج کې يوه مسکا زما غزل شوه
يا خوزه ښکلا پرست يم يا ښکلا زما غزل شوه

زما د شنه زړګي له سمڅو ديوو اه په وربودرشي
ستا د شونډو ښکلا روي څهٔ بلا زما غزل شوه

تا د ستوريو پيرته وويل هغه تول په ما را چف کړو
هر حسرت ته دې صنمه په دعا زما غزل شوه

دا سي نه دی چې ته نه يې نو خيالونه دې هم نه شته
ستا د خيال له تصويرونو اخترا زما غزل شوه

لري تله به دې زه ژاړم د دې نورولس پرې څه شي
ستا د حسن له رنګونو بېنوا زما غزل شوه

اوس خوشپو په غيږکې نغښتې ويرونکی تصوردی
درليږم به يې ډالۍ کې که رښا زما غزل شوه

چرې خوب کې پيښه وکړه ورته ووايه يوسف يم
د عزيز حرم ته درومې زليخا زما غزل شوه

غضري د زړه په وينو ټکی ټکی لمبولې
خدايزده ولې له دې نورونه وړيا زما غزل شوه

ساجر سعودي عرب
۲۰۰۶/۷/۱۵

# دوريځې پلو

جام مې په سرپورته کړم اوبوکې سپوږمۍ وځيښم
توره تند مړه کړم په سپيدوکې سپوږمۍ وځيښم

ستا دليونتوب کيسه په بام ورسره تيره کړم
ځيرځير ورته ګورم په کتوکې سپوږمۍ وځيښم

وخاندي بيا مخ ته دوريځې پلو ونيسي
زه وايم چې ته يې تلوسوکې سپوږمې وځيښم

ښه مې دزاهدفتوا په زړه وي خوخواږه اشنا
ځان باندي پوه نه شم ستا ليموکې سپوږمۍ وځيښم

پرخه پرخه زړه مې ستا لاله ځوانۍ ته پور ورکړ
ماچې تنده واخلي ستاآينوکې سپوږمۍ وځيښم

سږکه داهاړګرمۍ هغسي زوراخستی وو
غلی به ديارد مخ خولوکې سپوږمۍ وځيښم

ماته به شي تنده غضري ددې غنچه ستوريو
زه چې دجانان سړوچينوکې سپوږمۍ وځيښم
ساجرسعودي عرب

۱۳۸۴/۹/۲۷

وريښمين کاڼي

عبدالرحمان غضري

# وښکې

زه ورته غوړومه جانانه ستا ليمې غړېدې
خواږه خواږه يې څه ويل خوږې خوږې غړېدې

چې درکاته مې پوهيدم چې په بلا به اوړم
زړه مې منل چې پسته پسته پستې غړېدې

له تورو څڼودې را الوتې زما په لوري
ځان يې عنبروکې مينځلی و وړمې غړېدې

خدای دې لري څومره هوښيارې وې ستا شوخې سترګې
هم يې غماز څاره هم ماته پسخيدې غړېدې

ليوني حسن دې دلمر په سترګه وارکړی و
زرينې وړانګې دې په غيږکې تويدې غړېدې

نن ورته غوړوه په حيرت دملکوت سندره
دبنګړو شرنګ کې دې شيرينې څه نغمې غړېدې

ښه مې په زړه دي چې اول ځل يې زمانوم اخيسته
په پستو شونډو دې بې دريغه انديښنې غړېدې

په سپين بارخو چې دې راتوي شوې درته څه يې ويل
چې غضري درڅخه تلم اوښکې دې مړې غړېدې
ساجر سعودي عرب
۲۰۰۵/۱۰/۸

# مهار

جانان ښکلی ګودر ښکلی چـــــنار ښـــــکلی
په دې ښکلیو باندي ښکلی دی یـــــار ښـــــکلی

ټکی ټکی تربي زړه کـــــي زرغـــونیـــــــربي
ساقي ښـــــکلی جـــــام يې ښکلی خمار ښکلی

له هر تـــــرنـــــګ سـره دژوند ښا پیرۍ ناڅي
مطریب ښکلی محفل ښـــکلی ستـــــار ښکلی

تک سپین وری یې لکه سپین ستوری په غیږکې
کوچۍ ښکلې او ښ یې ښکلی مـــهـــــار ښکلی

چې له شونډويـــــې راوزي ښـــــکلې لـــګي
خنـــدا ښکلې اقرار ښـــــکلی انـــــکار ښکلی

ښکلـــي ښکلي دي بې شکلیو ښکلا نــــه شته
چاليـــد لی بې ګــــلونــــو ګـــلزار ښکلی

له وحـــشته تصور کـــــيدلای نــــه شـــو
چې منـــــصور په غاړه کيست شودار ښـــــکلی

غضري دځــــوانۍ عمـــرداســـي تيـرشي
لکه تيرچې شــــــي يو ځلي په لار ښـــــكلی
ساجر سعودي عرب

کتهواز/۲۲/۱۱/۲۰۰۵

عبدالرحمان غضري

وريښمين کاڼي

# دچړو په څوکو

ستړیه ژونده شو بې یـــاره ژرژر درومه
ستړګې مه غړوه خواره ژرژر درومـــــه
رسوه مې دسکوت دناوې غـــیرتـــه
که په غره وي که په لاره ژرژردرومـــــه
تر ابده دارام امـــید حــــرام دی
مله دردونه شو ترداره ژرژر درومـــــه
یوه لحظه یې په تصویرلیمو خوارډه کـــړه
رنې او ښکې له روخساره ژرژر درومـــه
خوار قسمت چې دچړو په څوکو شپه کړه
لکه څړیکه له پـــــرهاره ژرژردرومه
عاقبت به دتیارو په زړه کې ورک شـــي
څوک چې پایې ترسهاره ژرژردرومـــه
دفلک لمن له کــــانـــو سلیـــته ده
ځان ګوښه که له سنګساره ژرژردرومه
دلته ماردوحشت ســـــل سرونه کړي
هیڅوک نه پریږدي تر واره ژرژردرومه

غضري رنګه دښکلیو پـــه دې چم کې
رټل کیږې له نګاره ژرژردرومـــــــه

ساجر سعودي عرب

۱۳۸۵/۲/۲۵/

ورېښمین کانې

عبدالرحمان غضري

# میوه مینه

موري زړه مې سوړدی لړيې تودکړه په توده مینه
ستړی دی دژوند ناخوالو وړې ترې خوږه مینه

پرېږده چې لړوژارمه ورسته مې بیا ښکل کړه ته
اوري مې په زړه دماشوم توب وړه وړه مینه

ګورم دټیکري ته اله ژرپلو راوارووه
خلاص یې کړه اوراکړه ترې یوڅوداني میوه مینه

خیر دی که ترمنځ مو هیوادونه او سیندونه دي
لمونځ چې موري وکړې په دعاکې رالیږه مینه

موري له تالري دا ژوندون راته ژوند نه ښکاري
خدایږو څنګه د رشمه چې ښکل دې کړم کعبه مینه

دلته چې له چا سره مور وویننم نولیږمه
نور خو مې وس نه وي رابه زړه کړم ستا زړه مینه

مینه مینه او سه زما تر ژونده زما خوږې موري
ستا په ژوند ژوندی ده زما د ژوند خوره وره مینه

ربه غضري درنه په ژوند کې نورڅه نه غوارم
مور راسره پرېږده درنه غوارم دغه یوه مینه

ساجر//۱۳۸۵/۲/۸

وریښمین کاڼي

عبدالرحمان غضري

# لامبو

بیګادې خیال زما په سندروکې لامبو وهله
په خدای زړګي مې په مجمروکې لامبو وهله

رښتیا پرون دې سوربارخوخولوکې داسې یسید
لکه لاله چې ملغلروکې لامبو وهله

ته خو مسکۍ شوې د سوما پیاله دې یوه رنده کړه
شوخې ځوانۍ دې په کوثروکې لامبو وهله

وخته دریادشي زما اوستا په دماغ هم خواره وو
د جانان څڼو چې عنبروکې لامبو وهله

هغه ارمان دې یاره څه شو اوس یې څرک نه لګي
چې همیشه بې ستاخبروکې لامبو وهله

کلی خوڅه کړې د ګودرها مازدیګر را یادشي
چې پلوشو به په نښتروکې لامبو وهله

څه لیونی وم غضري د زړه مې نه منله
ګنې احساس به مې شکروکې لامبو وهله

۲۰۰۶/۲/۱۲

وریښمین کاڼي

عبدالرحمان غضري

# د هیندارو کېږدۍ

د هیندارو په کېږدۍ کې کاڼي اوسي
اوریدلې مې سپوږمۍ کې کاڼي اوسي

چې یې وښکنځلم هله مې یقین شو
چې د یار پسته خولګۍ کې کاڼي اوسي

د قدرت ښکلا یې څومره مقام لوړ کړ
د خوبانو په هوږۍ کې کاڼي اوسي

د جانان خاطر دی څه و کړم رقیبه
ګنې تاته مې مرۍ کې کاڼي اوسي

دا د ګلو هیلې ګل وطن ته یوسه
لیونی یو زموږ څولۍ کې کاڼي اوسي

چې په سر د فرنګ پریو تل نو پوه شو
چې ټپه د ملالۍ کې کاڼي اوسي

درد سلګۍ او پریادونه مو پیشه دي
یاره زموږ په زندګۍ کې کاڼي اوسي

غضري هسې دې هم طالعې سپیرې وې
د الابله چې سپرغۍ کې کاڼي اوسي
ساجر سعودي عرب

عبدالرحمان غضري

وریښمین کاڼي

۲/۲۱/۲۰۰۴

# ډولۍ

دستوریو رڼـــاتـــه یې دسپوږمۍ پلوشې ته یې
دلمرله وړانګو جوړه زماکوچۍ پلوشې تـــه یــې

دهرغاټول په پاڼوکې تصویرستادرورخـساردی
ښکلازموږد ښتو دکیږۍ پـــلوشـــې تـه یې

سپرلی دې دروارې شي که داکم وي زه دې هم شم
سپرلی په تارنګین دی سره غوټۍ پلوشې تــه یې

سراب دساغرڅه وي دزړه تنده لاسیــــواکـړي
زمادترږې زړه سرابې مئ پـــلـــوشـــې تـــه یې

په سره جوړه کې سپینې دحمیددشـعرمطلع شې
هغه ژاله لاله کې لیونۍ پـــلـــوشـــې ته یې

خدای مه کړه چې دبلې ناوې خیال پکې ویده شي
ارزوزمادسترګودډولـــۍ پــلــوشـــې ته یې

ساجرسعودي عرب
الریاض

عبدالرحمان غضري

وریښمین کاڼي

# اشنا غیسي

دا چې پراته دی په میدان خواره واره سرونه
لکه چې بیا نذرانه شوي پښتانه سرونه

قاتل پردی دی لیکن غشي یې ضرور اشنا دي
ځکه په ښه لګیدلي ټول درانه سرونه

توره دې مه پلوره لاشته د پښتنو غلیمان
په دې به ژغورو په نړۍ کې دا پیڼځه سرونه

راځئ دا سپیني ږیرې و ستایو په سپینو زړونو
خدا یږو که راشي بیا په نویو کې زاړه سرونه

بې له پښتونه دا خصلت وایه نړۍ کې د چا؟
زامن په دار خیژوي ژغوري میلمانه سرونه

دلته رګونو کې دوینو په ځای اوربهیږي
ساړه به نه شي دا له شوره ډک تاوده سرونه

۲۰۰۴/۲/۱۸

عبدالرحمان غضري

وریښمین کاڼي

# د خیال کب

د خیال طلایي کب مې د ژور سیند تل ته تللی
راځي چې خامخا به په عنبروي لړلی

د لمر د وړانګو لاس کې مې تصویر د جانان ولید
هغه لکه چې لمر سره جوړ کړی وي کور کلی

د از ما د ځوانۍ رنګ هم په خپل رنګ ګډ کړه سپرلیه
په سرو رنګونو پټ کړه زما د یار د ناستې ځلی

رښتیا د اشنا نو مه ځو مره خوږېږي د رلوګی شم
بې تا مې بل په زړه کې نه اغلې نه ښاغلی

د اښار کوڅې پردې دي غضري لرې دې ځان پوه کړه
ته نه یې له دې خلکو یې له بل ځایه راغلی

ساجر سعودي عرب

۲۰۰۴/۵/۲

# زیری

پل یم د جانان د قدم پاته پــــه دې لاریـــــمه
باده ورانه وه مې مه یو څـــلی دیـــا دګاریمه

حسنه پیغمبره مادمینې پـــه دیــــــن واړوه
دا سې راته ښکاري چې بې مینې ګناه ګاریمه

اوس مې د زړه وینې د لیمو پــه لاربلدې شوې
نن که څوقترې یم سبا زیری د بـــــهـــاریـــمه

مه وړه لیونتوب رانه د عقل ککۍ واخـله زما
ښه دی چې حساب په لیونیانو دې ښاریمه

نه خوښوي نجونې د بازار زما غضري غـــزل
زه ساده شاعر د کلیوالې پیغلې هـــاریـــمه

عبد الرحمان غضري

وریښمین کاڼي

ساجر سعودي عرب

۲۰۰۴/۵/۲۰

# ننواتې

اوښکې ننواتې کړم که سترګې ننواتې کړم
یاره که ته وایې دا به غبرګې ننواتې کړم

ستا د پیغلتوب په محرابونو کې به ورغړې
ځان سره به شپې د شیخ بزرګې ننواتې کړم

ستا دې په ما پورې د زهرا ځوانۍ سره غزل
یو وار به ورېمې په نارد درګې ننواتې کړم

هو ، به یې ځواب وي یار پښتون دی انکار څه مانا ؟
زه چې پرې د ابشکلې زړې ګرګې ننواتې کړم

غواړي غضري هغه له ما د شباب سره کسي
زه مې پرې د امړاوې ځوانې څرګې ننواتې کړم

وریښمین کاڼي

عبدالرحمان غضري

ساجر سعودي عرب

۲۰۰۵/۸/۹

# خاطره

دژوند ساحل ته مې قسمته څپې مــــــه راولــه
زه مرور بنه يم له وخته جــــرګــــــې مــــه راوله

دا يو پرهر په زړګي ښه دی د جانان خـــــــاطــــره
ناښاد خاطره زياتې نور خــــــاطـــرې مــه راوله

مور ليونيان يو ټول هينداري په ډبــــــرو ولـــــو
حسنه عبث دلته د رنګ قـــــافـــــلې مه راوله

د عصر ژبه به چالاکــــــه وي منـــــــم درســـره
سترګو دې جارشم زما په سترګو پردې مه راوله

د بوډۍ تال دی سايه نه لري چې کـــښيـــنوورته
ماجل وهلي ته په سر بې ســـــايــــــې مــه راوله

وريښمين کاڼي
عبدالرحمان غضري

نن د شهيد ي خور شهيد خال راته خوب کې وويل
زما قاتل دی دا شين سترګـی دلـــــې مه راوله
ساجر سعودي عرب

# شهيده مسکا

يو څوک مې د زړه وره کې مسافر غونـدي ولاړ دی
رابولم يې خوست کړي مـــرور غـــوندي ولاړدی
راځي ترې د ګلابو او غاټولو دبـــوی کـــډې
نسيم په روح کې ولی سپين سحر غوندي ولاړ دی
وروړم مې د شهيد ې مسکا مړی پـــه ليـــمو کې
جانان نن په کوڅه کې د محشر غــونـدي ولاړدي
کري مې د احساس دغره درزونـوکـــې هيندارې
دوړانګو په ځانګو کې مازديګر غـــوندي ولاړدی
راځه چې دا نيمګړي تصويرونه پرې تــکميل کړو
اشنادځوانی ستوری انځورګر غونــدي ولاړدی
چاويلې چې يادونه دې ماضي راځــــــه وړي
هرياد دي زما په زړه کې د ننبتر غونــدي ولاړدی
راليږه يې اشناکه دي غمونـــه پښـــتانـــه وي
زړګی مې خلاصه غيږ ورته خيبر غونـدي ولاړدی
يوه ورځ به د زمان له بارخو پري وزم لـکه اوښکه
رنګونه ورو ورو ليږدي ژوند کنډر غوند يولاړدی
پرون چې غضري زما دخـــوښـــيو مسيحاو
هغه نن د رقيب په سرد سپر غـــونـدي ولاړدی
ساجر سعودي عرب

ورينښمين کانې

عبد الرحمان غضري

۲۰۰۴/۵۳

# د سحر پرخه

زړه ته مې راغله خو په زړه کې مې قراره نه شوه
ارزويې مينه وه خو پاته تراقراره نه شوه

ټول حسرتونه د سبا په نامو وغولول
خو دا ايساره په محفل کې تر سهاره نه شوه

راغله يو څو ګړۍ د مه شوه بيرته وکوچيده
د سحر پرخه وه د ګل غېږ کې ايساره نه شوه

نمجنې ستر ګې يې نمجنې مرګ ته وسپارلې
د ارمان اوښکه يې راکوزه تررخساره نه شوه

د ځوانۍ بار يې په وړو د لحد زړه ته يو وړ
لمبه د حسن يې راجګه له مزاره نه شوه

غضري څو ځل مې د ستر ګو پړۍ خلاصې کړلې
د مرګ څپېړې ويده کړيې وه بيداره نه شوه

وريښمين کاڼي

عبد الرحمان غضري

ساجرسعودي عرب

۲۰۰۵/۱/۱

# د ساز بڅري

د ځوانۍ باریږي په وربودی زمانې تخنوي
بل مشالونه وړي لیمو کې نظارې تخنوي

ساقي قدرت يې په سروشونډو کې مسکا کړلې
په ځان غاره نه شي هغه ټولې نشې تخنوي

ګومان مې کیږي چې د شیخ په زړه کې هم ویده ده
ځکه په ټنډه تورې خاورې د سجدې تخنوي

قسمته ورمې وړه چې ښکل يې کړم د ساز بڅري
نن مې په زړه کې بیا یادونه ترانې تخنوي

د سروګلابو پېښې مه پرې کړه چې اوروانه خلي
سره رخسارونه دې هغسي هم اینې تخنوي

لږمې د خیال له دونیاګۍ نه حقیقت ته راشه
ترځو به پټه ستا ښکلا زما ولولې تخنوي

ساجرسعودي عرب

وریښمین کاڼي

عبدالرحمان غضري

# ترږې کیسه

دلمرپه اننګوکې هم پیغام دمحبت
دشپوتورو کمڅوکې هم پیغام دمحبت

له اوښکو سره یوځای راتېوکیږي لکه ګل
دښکلیوپه لیموکې هم پیغام دمحبت

رنګونه دسپرلي له محبته زیږیدلي
خپریږي په وږموکې هم پیغام دمحبت

ساقي چې دمیخوردسترګوترږې کیسه لولي
ارزو یې په پیالوکې هم پیغام دمحبت

دزړونوحیاتي دمحبت له برکته
حیات وته په زړوکې هم بیغام دمحبت

دا ژوندخومحبت وته دژومي مازدیګرو
کاش راکړي څوک په تلوکې هم پیغام دمحبت

ساجرسعودي عرب

# څپه

درنګ څپه به شم په شونډو به دې وغوړېږم
تو ده غرمه به شم په شونډو به دې وغوړېږم

دو مره د مینې ست د سترګو کونج کې څله کوې؟
یوه ورځ میلمه به شم په شونډو به دې وغوړېږم

ته مې به مسته ادا وځیږه د زوق ښابیرۍ
ټپه ټپه به شم په شوند و به دې وغوړېږم

چې بیا په ژوند کې د توبو توریو ته جوړې نه شي
د اسي نشه به شم په شونډو به دې وغوړېږم

کله سلګۍ کله مسکا کله یو سوړ اسویلی
لمحه لمحه به شم په شونډو به دې وغوړېږم

زړې شکوې به د ژوند و ن له میرو ولېږدوو
نوې وعده به شم په شونډو به دې وغوړېږم

پرون سحروم نن غرمه سبا په زیړ مازدیګر

عبد الرحمان غضري

وریښمین کاڼي

یوه افسانه به شم په شونډو به دې وغـــــوړېږم

که دې د تیرو په خیر هــــیر کـــړم غضري جانانه
نرۍ ګیله به شم په شونــــډو بــــه دې وغوړېږم

۲۰۰۴/۴/۲۹

# د جانان تصویر

ښکلیو بې حسابه په ټټراینې کــــرلــــې دي
ځکه مې هرځای ورته نظراینې کــــرلې دي

ښکاري دا سپرلي هم مین شوي دي کنه وي نو
ولې یې په چم کې د دلبراینې کــــرلـــــې دي

ګوره د ښتر په پیغلو څڼو باندي پـــــړک وهي
پاس د غره په سر کې ماز دیګراینې کـرلې دي

تا به د تسپو دام د جنت حورو ته ایــــښی وي
موږ ته په جامونو کې کوثراینې کــــرلــــې دي

وریښمین کاڼي

عبدالرحمان غضري

خدای شته غضري مادجانان تصویرته وویل

تاته مې دزړه په هرپرهر اینې کرلېدي

ساجرسعودي عرب

۲۰۰۴/۷/۱۷

# پنجې

څه مسکی مسکی ماحول دی تخنیدلې غوندي شپې دي
نن دې بیا سترګوکې یاره ټوکیدلې ترانې دي

خښوي په زړګي نوکې په جنبش دتورو سترګو
ستابانړونه دي صنمه دخوني زمري پنجې دي

غرقوی دهستی څلی ورانه وي دعقل خونه
ستادمړوسترګوساحل کې دژوندي جنون څپې دی

یوشفق وینې ترې څاڅي دکوم ستوري مرۍ پرې شوه
که یې ماتې په ګوګل ستادحسن اینې دي

چې دزړه خرقه کې سوځي دتقوادهستۍ زړې
داله کوم مجمره جوړي ستادشونډوپیمانې دي

زړه لاڅودرپسې خوړین کړم غضري حال خومې ګورې

وریښمین کانې

عبدالرحمان غضري

په سپین مخ مې راروانې د سرو اوښــــکو فــو ارې دي

ساجر سعودي عرب

۲۰۰۴/۹/۳

# د سندرو تعویذ

زه د غزلو بارترم ګوره چې ولاړه نــــــه شــــې
نن دي په حسن څه لیکم ګوره چې ولاړه نـــه شې

بیګاراغلې وه په خوب کې ستـــاد حســـــن پرې
کیسه یې بیادرته کوم ګوره چې ولاړه نــــه شې

لامو دزوق شپیلۍ په نوې ژبه نه پـــوهیــــــږي
زړې نغمې وریادوم ګـــوره چـــې ولاړه نه شې

د لمرپه پیرمې درتــــه کښلی د ســندرو تعویذ
په سوراوتال کې یې ګنډم ګوره چې ولاړه نه شې

زیړ مازدیګر ستاد منګي داوبو غــړپ کې څښم
داتوره تنده ماتوم ګوره چې ولاړه نـــه شــــې

لاڅوقترې د ځوانۍ وینه د زړه جام کې پـــاتـه

وریښمین کاڼي

عبد الرحمان غضري

د شونډو او رېږي لګوم ګوره چې ولاړه نــه شې

نن به په ګډه دا سپيره شپه په عنبرو ميــــنځو
د څڼو غوټې دې شپږم ګوره چې ولاړه نــه شې

نغمه نغمه نن غضري د مينې ساز ته درځـــم
پيغلې ټپې دې تخنوم ګوره چې ولاړه نه شې
ساجر سعودي عرب
۱۳۸۵/۱۱/۱۱

# د نغمو ژبه

راشه چې پښــــــــتــــوژبــه دروښيم
مسته د نغـــــموژبــه دروښـــــيم

جنـــــګ ته چې زلمي په خرخشو بيايې
دا ســـــي د نغـــموژبـــه دروښـــيم

دروند به شې جانانه د سپين غرغوندي
بس چې د درنـــوژبـــــه دروښـــيم

توره چې ملالې په ميونــــد کې کـــړه
هغه د ټـــپو ژبـــــه دروښــــــيم

پوه بـــه د خيبر پـــه خـــړو تـــړو شې
ښکـــلې چـــــې د غرو ژبه دروښيم

ګرانــــه راځــه روح دې ګلورينه کړم
سمه د ســــپرلـــــوژبـــه دروښيم

عبدالرحمان غضري

وربښمين کاڼي

خنګه په حــیا جانان ته ګورې څوک
ځـــه چـــې د لیمـــو ژبه د روښیم

نن لاغــــضري د ښکــــلیو پیریمه
را شه د بـــنګړوژبـــه د روښـــیم
ساجر سعودي عرب

# تنکۍ ښکلا

عشقه که جنون یې نو را غـــاړې وځـــه
شور که د ژوندون یې نو را غـــاړې وځه

زه د یوې سپیڅلې ګـــناه لــــته کـړم
ته که یې مضمون یې نو را غـــاړې وځه
مرمه د ګلاب تنکۍ ښکــــلا پـــسې
ګرانه که ګلګون یې نو را غـــاړې وځه
سترګې مې رڼـــا پـــسې ملــنګې وې
بس چې ســــباوون یې نو را غاړې وځه
وخته د مــــاضې شپې دې زهــــروې
اوس چې څه شیرین یې نو را غاړې وځه
ستړې یم له څړیکو خـــوبـــیا هم ګله
در که د پښتون یې نـــو را غـاړې وځه
زه یې له وصاله پـــــردی کــــړی یم
خوښ که په بیلتون یې نو را غاړې وځه

عبد الرحمان غضري

وریښمین کاڼي

ګرځم غضري په يـــوه جـــلوه پسې
څرک که دلټون يې نـــو را غاړې وځه

۱۳۸۵/۹۱۴

# هينداره پښتانه

نه چې ځي دوه سم پــــه يـــــوه لاره پښـــتانه
ښکاري چې نور ووتـــل لـــه کـــاره پښتانـــه

دم يې په چاوکړمه درمل لــــــه کـــومـــه راوړم
مري له يو ناسورغوندي پـــــرهــــاره پښتـــانه

څوځلې يې زهرددوستۍ پـــــه جـــام کې ورکړل
څه غواړي هميش له دې مـــــکاره پـــښتانـــه

نوربه لاترڅو پردي بدرنـــــګه تصويـــــرونه
ساتي په سپينه غيرة کې هيـــــنداره پښـــتانه

جهل يې په سرکې دشعورډ يـــــوې وژلــــــې
ځکه تل پردي وي له خـــپــل ښـــاره پښـــتانه

عبدالرحمان غضري

وريښمين کاڼي

ربه کوم درشل موپه سروو ینو کـــکړنـــه شو
مري به لانورخو مــــره بــــې ازاره پښتانه

کاشکي غضري په ژوند خو دا سي شیبې راشي
وینم چې په خپل وطن ســرشـــاره پښتانه

ساجرسعودي عرب
۱۳۸۵/۸/۱۷

# مفهوم

ګل کې مې هم ولیدې وږموګې مــــې هـــم ولیدې
یاره دسپوږمۍ په نظاروکـــې مـــې هـــم ولیدې

ته یې دزمان دهرخوځښت له قـــــافـــلـــوسره
لمرسره هم ته وې په تیاروکې مــــې هـــم ولیدې

زه چې دزاهداو دساقي پـــه قـــــدم درومـــمه
جام کې هم ستاعکس دی سجدوکې مې هم ولیدې

مادې دساحل په غاړه ســـمه نـــنداره وکــــړه
رنګ کې مې هم ولیدې څـــپوکـــې مې هم ولیدې

ته زمادوجود په هره برخه کې ووډلـــــی یــــــې
روح کې مې هم ته اوسې رګوکې مې هم ولــیدې

نورې دجانان په نوم دبل چامخ تـــــه نـــه اوړې
سترګې مې له تاډکې لیموکې مې هم ولـــیدې

ورینمین کاني

عبدالرحمان غضري

اوس چې غضري دليونتوب په مفهوم پوه شو مه
شور کې دې هم وينم زولنو کې مې هم ولـــيدې

ساجرسعودي عرب

۱۳۸۵/۷/۱۳

# دښکلا پير

زړه مې نذرانه و دښکلا پـــيرتـــه خـــو رانغی

ډيره تلوسه وه نن زما پـــيرتـــه خـــو رانغی

ماويل که نن راغی زه به تيرپـــه هيـــرورو ګنم

وربه کړم په سترګو کې مسکا پيرتـه خـو رانغی

نن مې دليمو لپه له مړاو هيـــلـــوډکـــه وه

ټولې وې په هيله ددعـــا پيـــرتـه خورانغی

غوښت مې چې نظربې دټکور په ژبه پـــوه کړمه

ښومې نوی چل دمسيحا پـــيرتـــه خورانغی

وريښمين کاڼي

عبدالرحمان غضري

مامې به غزل کې دا رزو تصویر ور ولیږه
ولو ستله څوځلې ملا پیرته خورانغی
هسی غضري یوو لیو نتوب په سرا خستی یم
خاورې مې ځوانې کړه دې بلا پیرته خورانغی
ساجر سعودي عرب

# امیانۍ

مادمورد دعاګانو امیانۍ ترملا تړلې
زه دلمر سکنی ورو ریم ما سپوږمۍ ترملا تړلې

دالفت په وزرونو کوه کاف ته یم ختلی
راسره دبخت بدرۍ ده له ملوکه ښکارم ښکلی
دپریو په زړګي کې لکه ګل یم ټوکیدلی
ددعا سلیماني ګوتې ماګیډۍ ترملا تړلې
زه د لمر سکنی ورو ریم ، ما سپوږمۍ تر ملا تړلې
دځوانۍ دښکلا غرمې په هم دې ګلو پوښلی
دزړګي ترږی ارمان مې دې چینه کې لمبولی
نسیم زما په اجاره دی په ټول کلي مې ویشلی
نورنو ټول پسرلي زمادي ماغوټۍ ترملا تړلې
زه دلمر سکنی ورو ریم ما سپوږمۍ ترملا تړلې
مادزړه تیاره رګو کې بې حسابه ډیوې بل کړې
مادژوند دپیغلې شونډې په هم دې برکت ښکل کړې
دحالاتو قصیدې مې په دې باب کې مکمل کړې

وریښمین کاڼي

عبد الرحمان غضري

ماد ژوند دیاغې ناوې سره ډولی ترملا تړلې
زه د لمر سکنی وروریم ماسپږمی ترملا تړلې
دامین په تارپیلې زما د مورد خولې خبرې
پاس د عرش زړګی ته ولاړې لکه ښې سپینې کوترې
غضري چې مستغني یم په ما اوری مرغلرې
ماد سپینو مرغلرو خځګی ترملا تړلې
زه د لمر سکنی وروریم ماسپږمی ترملا تړلې
۲۰۰۵/۱۲/۱۹

# وران ګناه کار

ته د قسمت زه د جانان ګناهګار
ماته ښکاره شوې ترما وران ګناهګار

زه ګناهګاریمه په زغرده وایم
ته په ګناه باندي پیښمان ګناهګار

که د حسینو درته تلل ګناه وي
زما په څیر دی درست جهان ګناهګار

خیرن ضمیر هسي جزبو کې وودې
نه شي هیندارو کې ګوزران ګناهګار

انصاف به نه وي که زمان پرې نیسو
هرڅوک په خپله دی د ځان ګناهګار

ځار دې له سترګو شم واعظه اشنا

ولې مې بولې په ګومان ګناهګار

بس جهالت دی نور به څه وو ایو
کنه نو ولې شي انسان ګناهګار ؟

غضري جنګ دی د لفظونو او بس
ګڼې په څه شو مسلمان ګناهګار
ساجر سعودي عرب
۲۰۰۲/۱/۱۴

# ګریوان

ترڅو مین چې په جانان نه ومه
اواره ګرځیدم په ځان نه ومه

په ما چې ګران و ورته ګران ومه زه
لکه داوس دومره ارزان نه و مه

بې درده زړه مې درد لیدلی نه و
د چاپه اه او په ګریان نه و مه

رنګینې سترګې مې د رنګ وړې وې
چې څه به یې وکړو پرې پیښمان نه ومه

چې مې میندلې بس رودلې به مې
د خاصو شونډو په ارمان نه ومه

زه او ساقي شراب شباب او مستې
هیڅ ،د ګناه په شبیستان نه ومه

وریښمین کاڼي

عبد الرحمان غضري

نه مې سجدې نه مې توبه پيژندہ
ګومره سړی وم په ايمان نه ومه

دوخت ګريوان رانه پناغوښتله
چې غضري په خپل ګريوان نه ومه
ساجرسعودي عرب

۱۳۸۵/۲/۱۰

# وريښمين کاڼي

کله تورا و کله سپين کاڼي راولي
ډيرنادان دی نازنين کاڼي راولي

عندليب غوندي له کړيکو نغمه واکړم
چې ګل مخی ګلورين کاڼي راولي

دزړګي په ښيښه خوچي راته وکړي
ليونی نظر وريښمين کاڼي راولي

دلاله په څيريې زړه م دداغ په شونډو
وخت په پرخه کې زرين کاڼي راولي

ترږی خيال مې په اميد اميد سنګسار کړي
شرابي شونډې ګبين کاڼي راولي

دکابل دسيند خوږې څپې ته وايه

ستا یادونه ابا سین کـــانـــي راولـــي

دپردو کـــانـــو نوبت خوپرون تیرشو
غضری نن همنشـــین کـــانـي راولي

ساجر سعودي عرب

۱۳۸۵/۲/۲

# پرواز

ځان رانه ورک دی زه په ورکوکې خـــپل ځـــان لټوم
په سیند لاهو قسمت څپه کې دطـــوپـــان لـــټوم
دزړه کعبې نه مې چاپره لـــپه دعـــــاوي وړیې
شک مې په دواړودی کافراومسلـــمـــان لـــټوم
خلک جانان پسې جانان وطـــــنه ګـــډه وکړي
زه دجانان سترګوکې ګرزمـــــه جـــانـــان لټوم
وزردي وسوزي د درد خـــــبره چـــاکـــــړې ده
زه خوپرواز غواړم دهسک غیږکې مکـــان لـــټوم
دمرګ استازی دي زما دنیتې پـــانـــه ګـــوري
زه به دژوند ستوري ته نور دښکـــلاتـــوان لټوم
شیخه هغلته مې دیارپه بارخـــــوخـــال تخناو
دلته راغلی یم په سپــــاروکـــې ایمـــان لټوم
دپیغلومیرې ته مې نن مـــابنـــام وعـــده ورکړې
پیره په تابه شي ټپې تـــایـــاقـــربـــان لټوم
یوڅوک خوشته چې دزړه کب مې په چنګک ورنیسي

وریښمین کانې

عبدالرحمان غضري

ښکلیو کې ګورم د کړو بڼو چشمان لټوم
منظور مې داوي چې غزل ته به تعویذ پرې وکړم
کله نرګس کله چنار ګورم کاروان لټوم
دالیونتوب مې غضرى دزړه ارمان ته ورته
چې هر ارمان ته په ارمان ارمان امان لټوم
ساجر سعودي عرب
۱۳۸۵/۲/۱۳
له کاروان څخه منظور پیر محمد کاروان صاحب دی

# وریښمینه مستي

یو څوک په شپه کې راشي د خبرو چل راښايي
خوږه خوږه غږیږي د شکرو چل راښايي

لا سونه زما ترغاړه لکه دوه دا یرې تاوکړي
په ستر ګو د بنګال د جادوګرو چل راښايي

یو څو لحظې د خم په څیر وریښمینه مستې راکړي
بیا تکه سره سپرغۍ شي د مجمرو چل راښايي

تکل د پیغلتوب یې ښايي زما د حس پاڅون وي
تنکۍ سحریې څڼې د عنبرو چل راښايي

د سپینو اوښکو څاڅکي یې د کسیو په لیمو کې
کرار کرار په رمز د مرغلرو چل راښايي

یوه ورځ به مې سندرې د چاښکلې شونډې روی

جانانه ستا یادونه د سندرو چل راښايي

پرون خوبي دیار دیدن ته سترګې نذرانه وې
نن بیا ولې زړګی د مرورو چل راښايي

د ښار رڼا ته نه ځم زه له سپینو شپو ویرېږم
داغر غضري ښه دی د ښترو چل راښايي

# ډیوه

ښکلې چې ارمان مې ترارمانه پوري وشړي
ځان ته مې بې ځانه ترخپل ځانه پوري وشړي

تیر مې ترقسم کړي په پښتو مې خاورې واړوي
درد چې مې بې باکه تردمانه پوري وشړي

ستوری شي ډیوه ځوانې د شپو په غیږکې وکړي
دید ته مې نظر ترکهکشانه پوري وشړي

تورا وربل ته څنډه ورکړي کوړې کوړې په مخ راشي
خدای ږویو کافر ترمسلمانه پوري وشړي

او ښکه او ښکه ژوند مې د جانان په ښوتک واهه
خدای خبر چې کله ترګریوانه پوري وشړي

نقل د تصویر دې د یوسف په نوم ځان وښـــــایې
ستا مینه مې یاره ترکنعانـــه پـــورې وشـــړي

ته وا چې اوښان یې په شکرو رابــــارکــــړي دي
زوق مې انتخاب کې ترکاروانه پــــوري وشړي

ښه یې غضرې په دې ساحل کې خو هوښیار او سه
نه چې لیونتوب دې ترطوپـــانـــه پـورې وشړې
۲۰۰۶/۱/۲۷

# طلایې وړانګې

یو څه خوشوی وو چې دومره پسخیدلـې پـــرون
له خپلو سترګو نه په خـــپله ورکیـــــدلـــې پرون

سروا ننګو دې لـــه سروشونډو سرې لمبې اخیستې
طلایي وړانګې دې په غیږکې ځنګـــیدلـې پرون

ټول کائنات دې دمدار په لـــــمــــــن ونخـــول
نغمه نغمه د خیال له ګوتو څــخیـــدلـــې پـــرون

دروح ساحل مې له هیبته لړزیده جـــانـــــانـــه
درنګ څپه وې په جلوه کې تیریــــدلـــې پـــرون

قاتلو څښو دې زما دځوانۍ خـــــون کـــــړی و
کوړۍ کوړۍ چې دې له غاړې تـــاویـــدلې پرون

دیدن دیدن وې په لیموکې دې زړه پـــروت و اشنا

وریښمین کاڼي                                                                 عبدالرحمان غضري

ځومره په سترګو باندي زړه زړه لګېدلې پرون

زهراځوانې دې په غزل سترګو کې خوب وړېې وه
غزل غزل مې په غزل کې غزېدلې پرون

ساده به وي ګوره د مينې په چل ښه پوهیږي
خوږه خوږه غضري څنګه غږولې پرون

ساجر سعودي عرب
۲۰۰۶/۱/۲۲

# تنده

خاورې نه شي د نور سارې زه او ته به څنګه یو شو
ګوښې ګوښې زموږ چارې زه او ته به څنګه یو شو

زه تور کاڼی بې ویشتلو بل هنر راسره نه شته
ستا ښکلا سپینې هيندارې زه او ته به څنګه یو شو

ته رڼې اوبو رواني د هر تږي مسيحا يې
او زه سرې دوينو دارې زه او ته به څنګه یو شو

چيرې زما خونړۍ تنده د کلونو جل وهلې
چيرې ستا شونډې ګلنارې زه او ته به څنګه یو شو

زما په روح کې ګناه شنه ده له ازله دوزخي يم
ستا په لاس کې د عشق سپارې زه او ته به څنګه یو شو

ليونی يم ښې پوهيږي په قدم قدم مې خارې

دا ستادوه سترګې هوښیارې زه اوته به ښـنګـه یوشو

غضري رنګه زما سترګې ستا په درکې شـــې بې دله
که هرڅوېې کړم دلدارې زه اوته به ښنــــګه یــوشو
ساجرسعودي عرب

۲۰۰۲/۱/۲۳

# انتظار

لکه زګیروی دې دپرهارپه خولوکې وکـــــرلـم
قسمته بیادې دګوزارپه خــــولـــوکـــې وکرلم

ستادجفاکانې راځي زمـــــا پــــــه ســرلـګیږي
څه بې پروادې دسنګسارپه خولوکې وکـــــرلم

نوردې دحسن اعتکاف کې جنـــتي شـــــوا شنا
زه دې په څه دانتظارپه خــولـــوکــــې وکرلم

زماطالعې دې کنه داسې چــرې نـــــه وو شوي
ګلناروشوندودانګارپه خــــولــوکــې وکرلم

ساده خبره ده ملګروسرپـــرې مـــــه خـــوږوئ
دوخت منصوروم چا د دارپه خولـوکـــې وکرلم

دروح ساحل مې دګناه طوپـــان تـــه وپسخیده

عبدالرحمان غضري

وریښمین کانې

ساقي جانان چې دخمار په خولوکې وکړلم

دځوانۍ ښکلي مې دزخمي اوښکوله شونډو څخه
ګله شبنم يې دسهار په خولوکې وکړلم

روغ کليوال وم غضري په مينه ښه پوهېدم
شوم پردی مخې چې دې ښار په خولوکې وکړلم

۱۳۸۴/۱۰/۱۷

# سندره

څنګه سندره شم شپېلۍ دجانان اوراخستی
زړه ونه لمبې وهي خولګۍ دجانان اوراخستی

دوخت درويشه زمادياره په نوم لاس جګ کړه رب ته
په هرپرهرکې يوې سلګۍ دجانان اوراخستی

دهسک څښتنه په اوبونه مري يوبل څه وکړه
دسيند په منځ کې مې کېشتۍ دجانان اوراخستی

داوښکو ستوري يې په سروکسيوکې وخوټېدل
غزل بې موره شوه ځوانۍ دجانان اوراخستی

دلته سنګسار دی دهينداروغېرلوېنوډکه
هلته ټپه سوځي کيږدۍ دجانان اوراخستی

ميراث زړګيه داميد په ځای دې تندرپريوت

وريښمين کاڼي
عبدالرحمان غضري

مسکا په ځان ژاړي کـکـۍ د جانان اوراخــــستی

وس به يې څه وړي غــضري ديـارمشکي وربل ته
غاټول بې ځانه پروت غــوټۍ د جانان اوراخستی

ساجرسعودي عرب
۲۰۰۵/۱۲/۲۲

# تصوير او تقسير

مصويره تو پيرډيردی ستا تصويرخوښ زما تقسيرخــوښ
زه تقديرپه کاڼوولم ته يــــې وړۍ ستا تــقــديــرخــوښ

ستا دنيا له رنګه جـــوړه زه داوښـــکـــوسيـــندراوړی
لارهم دلته جلاکيږي ستا خندا خوښه زمـــاويـــرخـــوښ

تا ته خوب کې يوسف درشي ما ته تورد زيندان ســــيوری
ځه له مانه ځان ته لري چرې بل ځــــای کــــړه تعبيرخوښ

د ا لاچاويل چې ديارپه ياردردونه پـــيرزونــــــه شـــــي
که وي د اسي نوبيا ولې يې شـــومــاتـــه دغـــم تيرخوښ

چې نه ويره له رقيبه نه ديـــــارپــــه وفـــاشـــک شته
هيڅ په هيڅ دې شيخه ولې تمام عمرکـــوشـــوګيرخوښ

سکندرورځنې توخو ، داملاله غونـــدي نـــــه شـــوه

وريښمين کاڼي

عبدالرحمان غضري

له کچکول سره به ځنګه دغه غیږ کړي مـــافقـــــیر خوښ

دا قسمت هم عجیبه دی د چا سر ته تــــاج دالــــــــی کړي
چا تې دا رغضري خوښ شي د چالاس ته یې ځینځیر خوښ

ساجر سعودي عرب
۲۰۰۶/۱/۱۱

# یون

دروح بځری مــــې زرغـــــون کـــړه ګنې مړبه شمه
دعشق په زړه کې مې راشین کړه ګنې مـړبـــه شمه

پرون چې وم هغه خـــویـــــوورم د پــــرون خاطرو
دنن په سترګو کې مـــــې نـــن کـــړه ګنې مړبه شمه

له زرین خیاله دې پریوتې یوه حــــقـــــیره قــتره
شاعره جوړ رانه مضمون کړه ګنې مــــــړبــه شمه

خیر دی که زماد خاطر کورد تور لحد تــــــیاره شـو
دیار کوځې مې سباوون کړه ګنې مــــــړبـــه شمه

قوه دعقل له حد ید سره زړه چــــــاودې ښــکاري

عبد الرحمان غضري

وریښمین کاڼي

دې زولنو ته مې جنون کړه ګنې مــــړبــه شمــــه

دا ګل ورين ژوندون مې سوځي دا زغو په منځ کې
ما دسکوت په غيږکې يون کـــــړه ګنې مړبه شمه

ساجر سعودي عرب

۲۰۰۲/۳/۱۳

# سترګې

بانو دې مړه کړه چې دې ښکل کړم سترګې
ښکلې رضا دې په څه چل کـــړم ســتــرګې

را شه زما دزړه په ســــاز ګـــــډه شـــــه
چې دې ټپه چې دې غزل کړم ســـــترګـــې

ته خوبې کيږده زمو ږسپيرو کـــو څـــه کې
ويږې به ياره ستا په پل کړم ســــــترګـــې

زړه مې د روح مرغۍ ته دا م دزلـــــفـــو
پورې به ستا په تور وربل کړم ســــترګې

ماته په نذر کې مســــکـــــــا را کــــوه
درته لوګی چې په محفل کړم ســـترګې

وريښمين کاڼي

عبد الرحمان غضري

ملګرو بخت به مې يارې کــــړې وي
که غضري ځان ته اجل کړم ســـتر ګې

ساجر سعودي عرب
۲۰۰۵/۹/۱۴

# د مرګ په پوله

نن د قسمت په سيالۍ وځو ترجــانـــانـــه ورځو
د خيال په غيږکې د محبوب تــــر کهکشانه ورځو

ستوري لمن کې را وړو تا ته ترې امـــيل جــــوړو
هوډ مو پښتون دی د رڼو غمو تـــــر کـــانـــه ورځو

کبر دې نه شي د غوټۍ ترسينه ګــــام وراخــــلو
هلته ورپوري ترلاله ترارغـــوانـــــه ورځـــو

ورېښمين کاڼي عبد الرحمان غضري

خبره او سه د سرو شونډو جام په لار کې غـــــوا ړم
تو ده غرمه ده د جنون تـــــرا متحـــانـــه ورځـــو

خا ورین به یوو خونوراني پیغلې مو غیرته غوا ړي
د مرګ په پوله د ښکلا ترنـــوریستانـــــه ورځــــو

لیمو خوا ره دي خو چې او ښکې یو چاره موځـــــه ده
که هر څو وریږدوانو زبه ترګـــــریــــوانــــه ورځـــو

چې د ساحل په غیږ کې وسو غضري خــــامــــوشه
مانا یې داده چې یوه ورځ به ترطوپـــانـــــه ورځـــو

کتهواز

۱۳۸۵/۱/۴

# د غزل لونګ

خیال مې د ځوانۍ په غیږکې پــریـــواته
خدا یږو د مستۍ په غیږکې پـــریـــواته

ږدې دې په بارخو باندي تـودې شونډې
څومره د شوخۍ په غیـــــږکــې پریواته

ښکلې د غزل لــــــونګ ترې وژویــــه
نن دې د خولګۍ په غیږکې پــریـــواته

اوس به زما احساس ته خامخانـــاخې
سازشو د شپیلۍ په غیږکې پـــریـــواته

وریښمین کاڼي

عبدالرحمان غضري

دردمې ستاپه څنوالواتــه غــواړي
ځکه دسلګۍ په غیږکې پــریــواتــه

خیردی که ژوندون مې پرخه پرخه شو
دادی دغوټۍ په غیږکې پــریــواتـه

ډیرمې ورته وویل زړه منل چــیـرې
ولاړدیوې کوچۍ په غیږکې پریواتـه

شیخه غضري ترجنت تیرښــکاري
غلی دکیږدۍ په غیږکې پــریــواتــه

ساجرسعودي عرب

۱۳۸۴/۹/۸

# هجران

زړه مې ورو ورو دهجران له غــمــه ریږدي
لکه ګل چې دخـــــزان لــه غــمــه ریږدي

دقسمت اوښان مې باردي خدای دخیرکړي
ځي په بله دي روان لـــه غــمــه ریږدي

په سروسترګوله یارانــو مخــه ښــه کړم
غلی غلی مې جانان لـــه غــمــه ریــږدي

دمسکاډیوې مې مړې شوې اننـــګوکې

ورېښمین کاڼي

عبدالرحمان غضري

جوړ دا وښکو پرې باران له غمه ریږدي

دا په څه مې دومره بد برخلیک نصیب شو
روح او تن مې هر زمان له غمه ریږدي

داسي غم مې خدای په زړه باندي دیره کړ
چې هر غم په کې دځان له غمه ریږدي

غضري رنګه څوک خوار مه شه زړګیه
همیشه ستړی ستومان له غمه ریږدی

دکابل نړیوال هوایې ډګر

۲۰۰۶/۲/۱۷

# مصنعي دوزخ

زموږ په کلي کې یو څو کسه ښاغلي اوسي
په چامین دي دایمان په څیر سپیڅلي اوسي

ښایې د پرخې په ژړا یې دردیدلي زړونه
ځکه ګلونه هم ګوم سوم او غریو نیولي اوسي

په دې برګي پړي ملامه تړه چې تښتي درنه
دلته اکثر خلک هم داسي مارخوړلي اوسي

وریښمین کاڼي

عبدالرحمان غضري

ښاري جانانه په ښاري ښکـــلاکې مــــه ورکيږه
په تورو غرونو کې هم ښه ښايسته ښکلي ا وسي

زما نظر که څوک پوښتې دلونګين پــه ځــونـدو
وايم به ښکلي دي په يوو سپنسي پـيلي ا وسي

غلط فهمي دې مصنوعي دوزخ کې کله سوځي
پښتانه غرږي دخليل په خـــولـــــولـــي اوسي

ساجر سعودي عرب

۱۳۸۵/۲/۷

وريښمين کاڼي

عبدالرحمان غضري

# دستور

اوس مې غزل کې هغه حسن هغه شـــورنـــه شته
جانانه ته نه يې د استاد سترګوتــــورنـــــه شته

سترګې دې جارشم د ښوغشي رســـــاراولــــــه
دلته د ستوردی دمينو مــــړيـــــو پـــورنـــه شته

جانان ته وو ايه پردي وطن مې لوټ کړه ځـــوانـــي
ژرمې د روغوا ړه زياتي مې زړه کې زور نـــه شته

ستړی وجود شونډې سپيرې د زړه په سرمې پولۍ
په دې بسيا وطن کـــې زمـــاد درد ټکورنه شته

ملګرو مړبه يم خو مړی مې وطـــــن تـــه يوسئ
دلته د اسرې شګې تودې دي خوند دګورنـــه شته

غضري هسي دفراق ژوندون په مرګ حساب وي
مرګی خوځکه چې خپلوان نه شته اوکورنه شـتـه

ساجرسعودي عرب

۱۳۸۵/۱۱/۲۷

وريښمين کاڼي

عبد الرحمان غضري

# داذان دروی

دوی په جنت پسي راختې ما ایمـــان وبــایـــلــود
ایمان ایمان وو ترا یمان مـــې خـــوږجـانـان وبایلود
کافروختونه مې دزړه په هــــرایـــات پـــسي دي
دزړه (یسن )مـــې ټکیـټکی پـــه تـاوان وبـایـلود

بلبله هسې دې نغمې تـــرغـــــوږومـــــه راشـــړه
نوربــه بـــلال نـــه شـــم مـــادروی داذان وبـایلود

دزړه په للمه مې وږمې دګــلــــوځنــــګـــه راشـي
زه بې باران یم مارحم دیــــزدان وبـــــایـلــــود

اوس به مې څوک په پرهرونوکې ټـــکـــور خـــوروي
قرارمې ولاړ او مادټول عمر درمــــان وبــــایـــلود

پریږدئ چې کړیکې مې جرس شي لیونتوب راویښ کړي
مادخونخوارمزله په لاروټـــول کـــاروان وبــایـــلود

قسمته مه راوړه دخم په ژبه ګـــونـــګ رمـــــزونه
مادجانان دسترګوکونج کې مست مغان وبـــــایـــلود

ولاړم په هیڅ کې لـــــکــــه صفـــرراته صفر ایـښی
سلګۍ سلګۍ اوزره ترکی مې ارمـــــان وبــایـــلود
دغضري دنیااوس ورانه دهـــــدیـــرې منـــظردی
له خپله لاسه یې درنګ رنګین جهان وبـــایـــلـــود
ساجرسعودي عرب
۲۷/۱۱/۱۳۸۵

وریښمین کاڼي — عبدالرحمان غضري

# د ښو ستن

د لمر په اننګو مې پنځا وو خو تښتیده
تصویر مې دې له وړانګو جوړا وه خو تښتیده

د مړو سترګو نظر دې ټوله ورځ یم کړولی
د روح په مقناطیس مې رانیوه خو تښتیده

بیګا دې ټوله شپه د سپین رخسار ډیوې ته ناست وم
یو خیال مې ستا په حسن لمباوه خو تښتیده

شین خال دې په تندي کې فلسفه داویستاوه
غزل ته مې پّه خولو کې ورکاوه خو تښتیده

یوه څړیکه لکه ستا د ښوستن ورپه کې رغښته
پر هر که مې هر څو راټولاوه خو تښتیده

تنها کې د زړه کي مې ترلیمو ورپسې راغلې
یو ښکلی یې په سترګو مچاهو خو تښتیده

ساقي په کې جوهر د خلوص نه وو نښتیځلي
خمار مې په خمو نو ماتوه خو تښتیده

بس ورک وم غضري د یو خاموش شور په څپو کې
جنون مې په مستۍ کې غرقاوه خو تښتیده

ساجر سعودي عرب
۱۳۸۵/۱۱/۸

وریښمین کاڼي — عبدالرحمان غضري

# ليونتوب

مست چې زولنو کې ليــونـــتوب نــه شو
داخو هډوېيو مخ ستړي تـــــوب نـــه شو

نه مني جرګې د سپينو اوښـــــکـــواوس
پاته پښتنوا له پښتونـــــتوب نـــــه شو

ته چې په کې رانه شي ماښکل نــه کــړې
هسي پټې سترګې خوب خو خوب نه شو

اوس هم ګريوانـــونـــوتـــه لاس اچوم
هير مې دايوخويي دماشوم تــوب نه شو

زمادزلميتوب بڼه که مـــــړاويـــې شوه
تاته هم درپـــــاتـــــه پيغلتوب نـــه شو

غواړې چې په نذرکې نبات شونـــــډې
داخو غضري بيا ملنګ توب نــــه شـــو

ساجرسعودي عرب

۱۳۸۵/۹/۱۵

# البم

د ساز غوندې خوږه يې د ټپې غوندي ښکارېږي
په خدای نن خوکټ مټ د پښتنې غوندي ښکارېږي

نيمکښ کاته دې ځارشمه نيم زړه دې رانه وکيښ
په نيمه شپه د نيمې ننداري غوندي ښکارېږي

په کوم نظرترسترګو ځان درورسوم ښکلې
نن ټوله تکه سره د سرې لمبې غوندي ښکارېږي

راځه چې څوشيبې دې له غزل سره غزل کړم
ته هم زما د سترې انديښنې غوندي ښکارېږي

ماويل چې داځل راغلې درنه پوښتم به صنمه
داولې دومره ډيرد فلسفې غوندي ښکارېږي

نورڅه دې غضري ستادويجاړ خيال په البم کې
سم وران افغانستان يې د هديرې غوندي ښکارېږي

ساجر سعودي عرب

١٣٨٥/١١/٧

# ولې

تل د پښتون په کور سنګسارولې وي؟
دغه سرونه تل په دار ولې وي؟

اوس خو هرڅه لکه ښیښه روښان دي
له موږنه ورکه په کې لارولې وي؟

ربه داستا په دې شتمن جهان کې
د پښتانه ځامن نهارولې وي؟

ولې یو ورور ومري دورور له لاسه؟
دلته مرګونه تل تکرارولې وي؟

څوک چې زموږ دژوند ډیوې راوژني
هغه قاتل زموږ سالارولې وي؟

دیوې ابۍ غیږکې رالوی شي دواړه
یو یې مظلوم بل یې خونخوارولې وي؟

غضري دومره دقرارپه غیږکې
داستا خوږمن زړه ناقرارولې وي؟

ساجر سعودي عرب

۱۳۸۵/۹/۵

# دوست

څوک د ماښام خبرې کړي او څوک ســـهـــــاربیلــــیږي
دا چا خوزږونه هم بـــــدل شــــــود چــــاکــــاربیلــــیږي

څومره ساده یم چې څوک لاس راکړي په دوست یې ګڼم
دلارې مل ترهغې مــــــــل وي چـــــې څـــــولاربیلیږي

ملګرواوس چې د شیطان په رنـــــګ رنګیــــــږي خلک
ښکلي ترې بیل کړئ که په توره که په داربـــیـــلیــــــږي

سبابیاڅوک خبرچې څوک قسمت په کــــــومـــه شړي
دنن ملګري چې له یوبل نــــــــه خمـــــــــاربیــلیږي

دغضري په قدرپوه نه شـــــوې ســـــاده محــبوبــــې
له سپینې غاړې دې دبهادزروهــــــاربــیـــلیــــــږي

ساجرسعودي عرب

۱۳۸۵/۸/۱۲

وربښمین کاڼي

عبدالرحمان غضري

# جنون

جنونه خپلوم دي خپله وې مې اوکنه؟
یوشوردرورېم رګوته قبلوې مې اوکنه؟

ساحله دپنا په طمعه نه یـــمـــه راغـــلی
درغورځم دي څپوته غـــرقــوې مـــې اوکنه؟

زاهدغوندي مې زړه په توبونه دی نـــازولـــی
انګاره ښکلوم دي ښـــکلوې مـــې اوکـــنه؟

سکونه دژوندون له سترو سترګو درځـــځیـــږم
یوه مړه بې تغمې اوښکه جذبه وې مـــې اوکنه؟

قسمته نور په زړه کې توان داوځړیکو پاته نه دی
نزدې دی چې ناسورشي رغـــوې مـــې اوکنه؟

یوڅوشیبې دې غیرته له فراقه راګـــوښـــه شوم
دیاردوصال خیاله زنـــګـــه وې مـــې اوکنه؟

نن بیادي دمزارخازوته ناست غضـــري ستـړی
معصوم پیره راپاڅه دمه وې مـــې اوکـــنه؟

ساجرسعودي عرب

۱۳۸۵/۸/۱۵

عبدالرحمان غضري

وریښمین کاڼي

# د مینې ګلاب

یو خیال مې د زړه خوښ دی یو ارمان په غیږکې نیسي
د اښې د جانان دي که جــانــــان پـّه غیږکې نیسي

کلونه د صنم د مخ پـــــه تـــړو کــــې ابــــاد وو
نظر مې ځکه بیا بیا سره ګلان په غــــیږکـــې نیسي

پــو هیږم لیونتوبه چې زمازړه دې څــــو مــره غټې کړ
ســاحل غوندي په پټّه خوله طوپان په غیږکې نیسي

یوزه نــــه یـــــم چې ستا د مخ انځورپه زړګي کاږم
د اښکلي د نورڅاڅــــکي هرانسان په غیږکې نیسي

زرغون مې په ګریوان کې ســـتـا د مینــې ګلاب نه شو
هرڅوکه د تودواوښکوباران په غــــږکـــې نــیسي

ملګرو د محبوب د مخ دید ن پـــــه کــــــرم کیــږي
د اخلک لیوني دي چې ایمان په غــــیږکــې نیسي

یوه ورځ به غضري ستا د سکون نوبت هـــــم راشي
هرد رد کله ناکله یود رمان په غـــــیږکــــې نیسي

ساجر سعودي عرب

۹/۸/۱۳۸۵-۵۲

ورېښمین کاڼي

عبد الرحمان غضري

# غزل

ستا دلیمو په ځیروم خوږلګـــیدم
زه د نغمو په ځیروم خوږلګـــیدم

دژوند ساحل مې له رنګونـــوډک و
مست د څپو په ځیروم خوږلګیـــدم

د تږیو زړونـــو مسیحـــا ومه زه
د شنوا وبو په ځیروم خوږلـــګیدم

پیغلو تهٔ شونډو په ماچک لګـــاوه
خوږ د منهٔو په ځیروم خـــوږلګیدم

د ښکلا ستوری وم د عشق مدارکې
روڼ د سپیدو په ځیروم خوږلګیدم

کله که تریخ به غضري شوم بیاهم
ستا د ښیرو په ځیروم خوږلګـیدم

ساجر سعودي عرب

۲۰۰۴/۱۱/۱۵

# پل

لکه غزل راباندي ګران غــونـــدي دی
دیارو ربل راباندي ګران غــونــدي دی

بې له جانانه مې نور هـــر څـــــه تـــرخه
بیا هم ازل راباندي ګران غــونــدي دی

زما په لیمو یې ږده راځې چـــې مـــاتــه
یاره ستا پل راباندي ګران غـوندي دی

قاتل مې دی خوراته یار خـــوښ کړی
ځکه اجل راباندي ګران غـونــدي دی

زما غضري عمر په ریاض کې تــیر شو
لا هم کابل راباندي ګران غـونـدي دی

عبد الرحمان غضري

وریښمین کاڼي

ساجر سعودي عرب

۲۰۰۴/۹/۳۰

# دوړانګو نيزې

په دې ساده مدارمکارې سپيدې مه ځنګوه
موږليونيانو ته هوښيارې سپيدې مه ځنګوه

چې د پرون وينې يې وڅښلې لپې لپې
دنن په ټنډه داخونخوارې سپيدې مه ځنګوه

هسې دې هم له سترګو خوب د مرګې ويرې وړی
بس دی تسپو کې ګناهګارې سپيدې مه ځنګوه

نورداد اوښکو دښکلا کيسه بيخې زړه شوه
د سترګو کونج کې داريبارې سپيدې مه ځنګوه

زلمي خوبونه دتوبو دوزخ کې ځله سوځې
کانې ماحودی داانکارې سپيدې مه ځنګوه

سياله مې يې پيغلې افسوس چې وطن داره نه يې
مابې وطنه ته دلدارې سپيدې مه ځنګوه

لامې پخوا په زړه کې ماتې ستادوړانګو نيزې
نورومې ټپونوکې هيندارې سپيدې مه ځنګوه

خدايزده چې څوک و دارمان قاتل دې چيرته ولاړی
غضري بس په انتظارې سپيدې مه ځنګوه

عبدالرحمان غضري

وريښمين کاڼي

ساجر سعودي عرب

# د برې زړونه

په زړو حساب نـــه شـــي د بـــرې زړونه
راځئ غورزار کـــړو چیـــرتـــه لرې زړونه

زړونه يې مه بوله تورکانـــي دي ټـــول
وژني په نه خـــبر لښـــکرې زړونـــــه

ځوانې دي وخورې دا د زړو ســـودا ګـــر
ځو مره ارزان وړي مـــرغـلرې زړونـــه

ستا سرې خور زړه څه بـــلا ونـــه کـړه
خورې په مزه لکه ګـــورګـــرې زړونـه

شاهين نظر دې لرېږه واک کـــــې لـــره
ښکلې ازار به کـــړي کـــوتـــرې زړونه

خدايه يو دا ســـي زړه مې زړه کې زړه کړه
چې په زړګي کـــې وي سنـــدرې زړونه

زما د غزل ژبه ګونګې خـــــونـــه ده
ولې مې نه اوري خبـــرې زړونـــــه

غضري ستا سينه کې خدا زده څـــه دي
لا په سينو کې شـــتـــه شکرې زړونـــه

عبد الرحمان غضري

وريښمين کاڼي

۲۰۰۲/۱/۵

## بې وسه

زما سلګۍ په اوښکو مينځې
ښکـــــولوي په پستو شونډو
زما پـــه ستـــرګو کې دردونه
وارخطا اوريـــږدنـــيـــولـــې
لکه شال په مـــاغـــوړيـــږي
لانو رڅه وکړي بـــې وســـــه
بس هم دا يې په وس پـــوره و
ساجر سعودي عرب

۲۰۰/۲/۲/۱۸

## ستوری

ستوری مه شي ياره

دخدای نوره ښکلا ده يره ده

ستوری تش ليده شي

اوزه تا په غيږ کې غواړمه

عبدالرحمان غضري

وريښمين کانې

# زلمي خوبونه

هاکي کيښنې
هارغړونې
ديوبل غيږکې سمڅت د مستيو
هايو تربله داور وژنې
هانرۍ ملادې نازکه لښته
چې غبرګيدله
چې تاويدله
هادزګيرويو تاوده نفسونه
تودې مچکې
ستامبول تيونه
ګلابې شونډې
خمارې سترګې
پکې ستونه دګوناهونو
څه چې په وينه ښايسته ګران و
شوپري برلاسي زلمي خوبونه

۱۳۸۵/۱/۷

عبدالرحمان غضري

وريښمين کاڼي

# ګرېوان

زماګرېوان کې یې ګل کېښود
په لمن کې یې ګردې کاڼي ځوراکړل
نه پوهېږم خدای زده ولې
یار او وار دي سرهم وزنه

ساجر

۲۰۰۶/۶/۷

# تکل

هلته یوزوړ سړی کټ مټ لکه یولعل پروت دی

دژوند په لپو کې تک سپین د ایمان سوال پروت دی
دوخت لیمو کې درنښا د پنځید و په تکل
سلګی سلګی د ترږمی غېږ کې مشال پروت دی

زړه مې ورکړی دی خالقه ما په تا سپارلی

زماهیوادستادنړۍ په تندي خال پروت دی
څنګه دې هیره کړم زما دزړه ټکور سندرې
ستاله لفظو څخه مې ډک دروح دسمال پروت دی
زه یې له اوښکو هم پنا ساتم دداغ له ویرې

وریښمین کاڼي

عبدالرحمان غضري

په ځواني مرګ ارمان مې ستا د مینې شال پروت دی
ستا د ګودر ګودر ځوانۍ د ننداري په هیله

زړه مې منګی خیال مې ترخنګ ورته کولال پروت دی
پښتو منمه غضري خو صبر یې د ل تري ګران دي
په هسکه غاړه یې د تور وزلفو تال پروت دی

## روپۍ

د غزل جامو کې راشي د ګودر ځواني لمبه کړي
د اښکلي څه بلا دي د اختر ځواني لمبه کړي

دوه غلې سپرغۍ سترګې په ادا چاته ورواوړي
په زړه باندي اور بل کړي سمه غر ځواني لمبه کړي

د خیال سره ځله کې مې کنګل ارمان سا ه واخلي
صنم چې کله کله ما زدیګر ځواني لمبه کړي

توبه یم سپین ایمان لکه روپۍ راباندي ګران وي
بس غم هله راجوړشي چې ساغر ځواني لمبه کړي

نازکې پرۍ مخې د بلۍ سیوري ته ګرزه
آها ړدی سره غرمه کې به دې لمر ځواني لمبه کړي

ترڅو چې غضري ته د ویصال منزل ته رسې
ترهغه به دې د استړي سفر ځواني لمبه کړي

وریښمین کاڼي

عبدالرحمان غضري

۱۳۸۵/۲/۸

ساجر

# ربابی نسیم

موږ به هم داخپلې غوړې څنې واچوو ډولوته
بیابه وو ایو سندرې ویرید لیو چو پو زړوته

داتڼ دوړې به وینې په میدان چې پورته کیږي
مرورمرغان به ګورې چې له موږ سره ګډیږي

ربابي نسیم به چم ته لپې لپې نغمې راوړي
سرې غوټۍ به پسته غیږکې د شبنم لړونه نغاړي

بیابه وویني دادښتې چې کیږدۍ شي پرې پلنې
بیابه ومینځي په عطروپسرلی د غرولمنې

دکوچنی شپونکي په لاس کې به کوچنۍ غوندې شپیلۍ وي
په نغمه کې به یې نیولې ترانه د سوکالۍ وي

داکیسې به ټولې وینې راته ګوري به اسمانه

وریښمین کاڼي

عبدالرحمان غضري

لکه ته داسې به شین وي ستازړګی هـــم لـــه خـفـګـــانه
چې تـیارې لمبه لمبه شي سپیدې داغ وکړی رنـــاشــــــي
ستالـه بام نه لمررا والوزي اوزموږکـــلي تــــه راشـــــی

۲۰۰۴/۳/۲۲

# دجانان کلی

څوسپیرې سپیرې جونګړې
یوه ویاله یوڅوچنار
لوړپه زوړ ورته راغلې
یوه ختهینه سپیره لار
په کې اوسي څوسپین ږیري
څوسپین سرې اکوګانې
یوڅوښکلي ماشومان
یوڅوزلمي یوڅوپیغلانې
له جونګړوسره خواکې
یوه کوچنۍ غوندي هدیره ده
لږراښکته ترې ګودردی
دټول فصل سردنه ده
شته منې بې یوڅومیږې
یوڅووران ویجاړپټي دي
چاکرلي پرې غنم دي
چاانګورچاختکي دي
زماسلام ورباندي وایه

عبدالرحمان غضري

وریښمین کاڼي

هغه کلی د جانان دی
هغه ښکلی له جهان
هغه زما دزړه جهان دی

ساجر سعودي عرب
۲۰۰۴/۵/۲۳

## د رسره مينه لرم

شبنم يو څو څاڅکي مالګينې او ښکې
دغوټۍ خولو کې ورکړې
او ورته ويې ويل
ګرانې ترتامې په خوارۍ راوړې
نه چې دلمروړانګې خبرې شي
او و تښته وي
زړيې دزړه سيفۍ ته ورسوه
زه به بيا راشم يا به رانه شمه
تا ته چې کله هم دریاد شمه زه
دخپل زړګي سيفۍ کړه خلاصه
او زما په مينه
يو څو شيبې زماناکامه او ښکې
مخ ته اينه کړه په کې وګوره ما
زما تصوير به خامخا تا ته خپل ځان وښايې
او د رته وبه وايې
د رسره مينه لرم هيرمې نه کړې

عبدالرحمان غضري
وريښمين کانې

له مانه هیره نه یې

ساجر سعودي عرب

# یقین

زما یقین دی
که خبره شي د مور په مینه
د استا په لاس کې سره قاتیله مرمۍ
که یو ځل وکړې ورته ځوک د مور او زوی نقلونه
که هغه یو ځلې په دې خبره وپوهیده
چې مور د زوی په درد دردیږي څنګه
بیا به د استا له لاسه
د چاسینې ته په ګډا او چور لاولاړه نه شي

ساجر سعودي عرب

# د تلوسې ژبه

هغه زما په مدعا وپوهیده
لکه چې زما د تلوسې ژبه اشناوه ورته

وریښمین کاڼي

عبد الرحمان غضري

سترګې یې مړې خوله غوټونه ډکې
ورو ورو زما سترګو کې خښې کړلې
او راته ویې ویل
جانانه نن راته رښتیا ووایه
درنجو خال مې په مخ څنګه ښکاري؟
ورته مې سل زړونه یو زړه کړل
او په یوه جمله مې
په تمبید لې ژبه داسې وویل
لکه ښکه ده طاوس
د کوم کتاب په غیږ کې

## نیمګړی نظم

زه د هیرجن شاعر نیمګړی نظم
د سپین کاغذ په مخ نیمګړی ښکارم
د نا اشنا منزل په ورکو لارو
یو عجنبي مسافر مړی ښکارم
بې ترنمه دي زما مات توري
وړد نغمو او نڅاګانو نه یم
د رمز په ژبه مې څوک نه پوهیږي
ذاکر د شونډو د زلفانو نه یم
نه مې په متن کې سپرلي کرلي
نه مې په باب کې څرک د مینې ښکاري
نه د خوږې بوسې ممنون یم له چا
نه مې په رګ کې تودې وینې ښکاري
نه مې له غرقو غرمنیو سترګو
د خیال مسکا د ناز خوبونه وړي
نه مې د حسن په وحشي د ښتونو

ياغي اسان د تخيل شړلي
دا سي يې وښيه سانسوريمه زه
هره ارزومې سانسور کړيې شاعر
بس د حالاتو په وريښمين قفس کې
لکه مرغۍ روح مې ساتلی شاعر
لکه د تيرو وختو هيره وعده
دا سي هيرشوی يم شاعر اشنانه
نه د پرون او نن ترسترګو شومه
نه مې څه طمعه له راځي سبانه
۲۰۰۴/۸/۲

# سکوت

لکه ما شوم ورپوري ونښتم
ماويل سکوت څه ما تيدل يې څه وي
په خوله مسکۍ شوه
خوزکي نظريې
زماد شو خوسترګو جاج اخيسته
بيايې د تل په شان مخ واړاو
او ويې ويل
اخيرته ولې د سکوت له جملې نه تيريږې
ساجر سعودي عرب

# زړونه

موږ خو په زړو کې وسو
ستا په دنيا موڅه دي

عبد الرحمان غضري

وريښمين کاڼي

که پرې لمبې اوروې
نو هم د اوس يې وارکړه
خو يوه خبر د رته په زغرده کوم
ته زړونه نه شې سيزای
ځکه چې ته هم په يو زړه مين يې
او هغه زړه زموږ په زړو کې اوسي
ساجر سعودي عرب

# آينه

اينه دروغ وايې
په آينه مه تيروزه
د اشنه ډبره چې نه زړه لري
نه سترګې
نه احساس شته په کې
دا د ښکلا په مفهم څه پوهيږي
راشه زما سترګو کې ځان وګوره
چې د رته وو ايې والله ښکلې يې
ثم والله ښکلې يې

# سندرې

زه به په اوښکو هم سندرې زده کړم
د اسې سندرې
چې هر توری يې له اوښکو جوړوي
د اسې سندرې
چې د اوښکو زړه کې وينې کړي ارمان

وريښمين کاڼي

عبد الرحمان غضري

او د ارمان زړه کې سندرې توو کړې
د اسې سندرې
چې د اګونګ کاینات
ورسره ټول لکه زما سندره
په خپلو اوښکو کې سندرې پو کړي
بیا به د اټولې ګلالۍ سندرې
لکه د اوښکو یوه خوږه سندره
په هغو زړونو باندې اوروړه
چې بې غرضه او بې ریا یې اوري

## ماتې جملې

زه لا تروسه د الف په سیپاره کې یمه
یو څو نومونه په تختۍ باندي لیکلی شم او س
کله نا کله یو څو ماتې جملې
له یوې او بلې سره و تړمه
چې بیا یې لو لمه نو ستا په څیرمې تت وت یو شي
استاد لا زما په لو رکتلي نه وي
چې زما په ستروګو کې د اوښکو وړانګې وځلیږي
خوزه یې ستا غوندي د سیپارې غیږته نه څځوم
ځکه چې سیپاره ټکی ټکی ستا په اوښکو ولیږي
او زما د درس مضمون هم
ستاد سپیځلیو اوښکو لوست دی اشنا
ساجر سعودي عرب

## توره تنده

څو مره معصوم زړونه دي وځورول
څو مره یتمې اوښکې وڅڅیدې

عبد الرحمان غضري

وریښمین کاڼي

ستا د نا پاکو هیلو توره تنده
په څومره پاکو وینو ولمبیده
د بڼ غلیم دې څوک و
د چاسپرلي دې وریت کړل
اخیر په څومره ارزې
ستا داو حشي تمنا
لا به د څومر خلکو
په ژوندون لوبې کوي
۲۰۰۴/۴/۱۴

# لا رویه که شاعرېې

لا رویه که شاعرېې

نو ښکلا خو دې خو ښېږي

را شه ښکلي توري د رکړم

زما لمن له تورو ډکه

خو مانه دي رنګولي

ته شاعرېې ته يې واخله

په کې پوکړه سره رنګونه

ستا احساس خو ښه ماهر دی

په کې وکره ترزونه

ستا د سر تر ورېښتو ډیر دي

واخله ستا نصیب نیولي

وریښمین کاڼي

عبدالرحمان غضري

څه ټپې څه ترانې کړه
څه ګلونه څه خالونه
څه پیلوزي کړه چې بل شي
څه دوړانګو امیلونه
لاروي لا وخت شته دی
لا اوس هم ناوخته نه دی
دا تاوده توري دروا خله
سرې وینې پرې تودې کړه
څه غزلې څه نظمونه
له چاجوړې قصیدې کړه
دا دستورو ځانګووینې
د سپوږمۍ وطن درښایم
دې کې هم تپه تیاره وه
دا زرین ستوري یو نه وو
چې شاعروباندې واوښت
سپیره توري کوګلونه
د مدار په غیږ کې کیښودل
دانه دانه خالونه

ورېښمين کاڼي

عبدالرحمان غضري

۲۰۰۵/۲/۲۲

# دزړه په لار

لاماشوم دزړه په لاروم
دزړه زړه رابانديجوړو
زه دزړه په مينه مستوم
زړه زماپه مينه موړو
مابه يوه ټپه ترې غوښته
ده به لپې لپې راکړې
څه به يې پورکړې له شاعره
څه به يې نورې ترې راغلاکړې
زماپه ياد دي کله کله به دی هم لکه ماشوم شو
ترانې بې رانه غوښتې
دفرهاداودشيرنې
افسانې بې رانه غوښتې

عبدالرحمان غضري

وريښمين کاڼي

زه به ناست لکه اناوم
ورته کړې به مې خبرې
دښادي له سپيره بخته
دبيبو سوې سندرې
شيبه پس چې به مې وکوت
دی به خوب وو رانه ورِی
تابه ويل چې لاروی دی
له وږدو مزلونو ستړی
لارويه هيرمې مه شې
داته څنګه رانه هيرشوې
په خدای ته مې هم زړګي ته

لکه زړه داسی راتيرشوې
له تاڅه پته چې زړه شوې
زموږد کلی يوه نجلۍ ده
له پستو کوچونه جوړه
تکه سپينه يې خولګۍ ده
لارويه دروغ نه دي
دادی لاس مې په زړه ږدمه
که دروغ درته ښکاريږي
په خپل زړه مې قسم خورمه
دبنګړو په شرنګ کې خنبې
پوره څلويښت زره سندرې
که يې تول کړي څوک ښاغلی
کيږي زرمنه شکرې
کله وايم کاشکې زماشي
دابنګړي اوداسندرې

ورينښمين کاني

عبدالرحمان غضري

لږخونه دي که خدای راکړي
دا پوره زرمنه شکرې
زه پوهېږم پټ پټ خاندې
لیونی درته ښکاره شوم
یا بیا ډکه خوله له پیو
کنکلی درته ښکاره شوم
زه تنها خوټولې نه خورم
دا پوره زرمنه شکرې
هم به ستا برخه په کې وي
هم د زړه هم د سیمرې
د سیمرې نوم مې واخیست

زموږ د کور به خوا کې کوردی
هغه ښې ټپې چې وايې
ها د مستې وړانګې خورده
نه نه هغه وړانګه نه
چې د سپوږمۍ غیږ کې ځلېږی
نه هغه وړانګه درښایم
چې د لمر ترزړه راخېږي
د غه وړانګه زموږ د کلي
یوه ساده غوندی نجلۍ ده
مهربانه مینه ناکه
یوه خوږه یوه ګلالۍ ده
خدای دې ډېرې شپې ژوندور کړي
چم محل پرې ښایسته دی
غضري یې احسان مندیم
زما غزل پرې ښایسته ده

وریښمین کاڼي

عبدالرحمان غضري

ساجر سعودي عرب

۲۰۰۴/۲/۲۲

# آهاړ

دامې ارزو ده چې دژوند به تندي
یوه بې عنوانه ترانه ولیکم
یو داسې کلک مزی له توریو جوړ کړم
چې د ښکلا وزر پرې وتړمه
څو په بدرنګو کوڅو وانه لوزي
پرېږدئ چې پوه شي د بدرنګو کلي
چې واړنګې څه ته وایې
پرېږدئ چې تشې شي د غرونو غېږې
دلمر له زېړې ځوانۍ
هسې یې هم په سرو لمبو کې سوځو
ښه دی چې ونه شي په زمکه ګلان
څو د انسان له وینو پاکه نه شي

وریښمین کاڼي

عبدالرحمان غضري

ورته ونه غواړئ د خیرباران
ښه ده چې د اد سپینو ستورو رمې
له سند رماري سپوږمۍ وتریږي
ورپسې ستړیې شي نوکان ووهي
ستوني کې وچه شي دژوند سندره
له دې پخوا چې څوک بې درد یې واوري
سلګۍ سلګۍ شي زره ترکې هیله
شپیلۍ یې ستړې شي له ستړیو نغمو
مخ ترینه پټ کړي په کفن سندره
پریږدئ چې وپوهیږي ستړ انسان
دغه خوارګوټکی دابد مرغه دامور مړی انسان
چې په زخمي لاسو ډبرې دځرک ماتوي
چې دآهار ګرمۍ دیوې ډوډۍ په طمعه ګالي
او هغه بله مورهم وپوهیږي
چې ستوماني یې صورت اوبواوبوکړ
چې د شیرخواربچی په خولوکې یې چوشک ورکړی
او هغه بلې اوه کلنې لورته
په لاس کې دوه کیلو څټک ورکړی
پریږدئ چې پوه شي چې دوی څه کړې دي
له خپل برخلیک سره له خپله لاسه
دچاپه خولویې اعتماد کړی دی
کوم اینده ته یې مسیږي ارمان
غواړم چې پوه شي دازوی موړي خلک
چې زموږ نړۍ ته شیطانان راغلي
په سپین قمیص کې دانسان په بڼه
دوینوتږي ښاماران راغلي
دانسانیت په لمن داغ لګوي

وریښمین کاڼي

عبدالرحمان غضري

زما اوستا به نوم قومونه وژني
خپل لیوني وحشت په سر اخستي
پیرۍ یې وسوې میلتونه وژني
لا به ترڅو زموږ په غوږو کې ځاځي
د دروغجن نجات ترخې خبرې
ولې موخوښ دي دا بد مرغه انسان
چې د انسان مرګ ته اتوم جوړوي
یوه ورځ به دغه د اتوم ښاغلی
زموږ په کورونو کې ماتم جوړوي
ساجر سعودي عرب

# ورک منزل

زما د ورک منزل او ږده مزلونه

لکه چې زما ترعمرډیر اوږده وي

لکه چې لاډیرې سکروټې

د ژوندون په لارو

وخت غوړولې زما هسې قدم ته

ترڅو به پرزم پورته کیږمه زه

لا به ترڅو د غم ډغرې خورمه

اخیر ترڅو به له مامخ ګرزوې

عبد الرحمان غضري

وریښمین کاټي

اخیرترڅوبه لاز ما په زړه کې
ستا د هجران توره بلا پرته وي

ساجر سعودي عرب

# لیونی زړه

زړه مې ګوره لیونی دی
لیونۍ سندرې وايي
بیا مرموز بخرې غواړي
پخوانۍ سندرې وايي
بیا زاهد په کاڼو ولي
بیا په رمز کې رندان ستايي
بیا توبو ته غاړه نه ږدي

وریښمین کاڼي

عبدالرحمان غضري

بیا ګناه ته لبیک وایې

لاوریاده تو ده غیږه

لایې هیڅ نه دي هیرشوي

لا یې خیال دیارپه سپین مخ

شنه خالونه پنځولي

بیا تو دې مچکې غواړي

داماضی په لورمې بیایې

دسوماشونډوته تږی

دمستې به لورمې بیایې

غواړي بیاله غاړې تاوکړي

دپیمخو سره لاسونه

غواړی بیا په ژبه واخلي

له لنډی زنې خالونه

غواړي بیامستې کړي ویښه

اوتوبې مې سره لمبه کړي

دجنت نیازمینې حورې

درندانوصدقه کړي

لیونی دی لیونی دی

وریښمین کاڼي | عبدالرحمان غضري

لاپه دې هم نه پوهيږي

چې د نازله د نيا لري

په بې نيازو کې او سيږي

۲۰۰۵/۸/۲۲

# د وصل ما ښا

لکه د وصل ما ښام
لکه د مينې ثلی
لکه د حسن کيږدۍ
لکه د للمې باران
په زړه مې اورې اشنا

*        *        *

د سپينو وړانګو لاس کې
د هرچنار پاڼو کې
د شنو او بو اينو کې
د هر ماشوم مسکا کې

وريښمين کاڼي

عبد الرحمان غضري

زه ستا تصویر وینمه

*　　*　　*

ته ادم خورهم نه یې
اورم له زړونو سره مینه لرې
د محبت د دنیا ګې معماره
چې تصور دې کوم
دا زړه مې ولې ریږدي
کټواز

۱۳۸۵/۱/۱

# پسرلی

زموږ د کلي د درې په کوټ کې
یوه چینه وټوکوه
چې یې اوبو تراوښکو ښې رڼې وي
زموږ د ګل د کاله پیغله غوټۍ
پکې خپل مخ مینځې له شنوبارو تو
دا سره غوټۍ زما د رنځ همځولې
له مانه تل پوښتي چې څه شو سپرلی؟
نن دې ځوانې ورته سورشال کړه
او زړه شنې نکریزې
مینه دې ټوله د نسیم وینه کې ونښتیځه
په سره بارخویې ورته څاڅکی څاڅکی وڅڅوه
ترڅو دا تانده غوټۍ

وریښمین کاڼي　　　　عبد الرحمان غضري

دځوانۍ رنګ کې دسرور څاڅکی شي
اوزمادهرزخم په چاودوشونډو
خپلې پستې شونډې په مينه کيږدي
راته مسکۍ شي
راته ووايې خوږمنه ياره
ډيرمبارک شه پسرلی راغلی
خدای دې دعمرتلې پاته شيبې
لکه زمادځوانۍ تاندې لره

ساجرسعودي عرب

۱۳۸۵/۱/۲

## ست

ماويل چې پس له څوکلونودرشم
داستاپه سترګوکې به اوښکې ګلان
له خوشحالۍ نه لکه ستوري بريښي
په سره باړخوبه دې رنګونه ناځي
نازکې شونډې به دې
لکه دسره لاله نازکې پاڼې
په ولولو کې ريږدي
غيږ به دې ست دهرکلي راته کړي

وريښمين کاڼي

عبدالرحمان غضري

نامردي تا خو دیو بل چاپه خولو

روایتي سلام راونه لیږه

ساجر سعودي عرب

۲۰۰۵/۱۰/۲۲

# هدآ

زه د تورو تیارو سیندیم

ته وړه شانته ډیوه یې

ته مانه شې رڼولی

زه پو هیږم توان دې کم دی

ډیوګۍ محل کې اوسه

خپل څلور کو نجه رڼا کړه

ما د تورو تیارو زړه ته

عبد الرحمان غضري

وریښمین کاڼي

دیو چاپه نوم آهدا کړه
زه منم چې ژوندون ګران دی
شته ترژوندلانورې ګرانې
ژوند خولارد تلوراتلودی
قافلې دي پرې روانې
له اغازه ترانجامه
سوزاوساز سره تړلي
دا بې تغمې خاورین زړونه

نازاونیاز سره تړلي
موږچې مینه ورته وایو
دادژوندیوه اله ده
بې له دې دژوندون ناوې
یوه اخستې جنازه ده
پسرلی اوخزان دواړه
خپله نه دې مهار شوي
دایولوی فنکاردحسن
په قدرت دي پنځولي

وریښمین کاڼي | عبدالرحمان غضري

دوه نومونه است او نیست دي

یو له بل سره تړلي

یو له شور او رنګه ډک دی

بل بیا هر څه پنا کړی

کتهو از خپل کلی

۱۳۸۴/۱۲/۱۲

# اینه

هغه زما د زړه آینه وه
چې زما زړه به یې غیبږ کې ونیو
ټول جود به یې زما ځان شو
ما به ځان په ځان کې ولید
له جهانه به ګوښه شوم
زړه به غلي راته وویل
څومره ښه شو چې زما شوې
چې له ځانه دې ځان ورک کړ
چې پنا شوې نو پیدا شوې
اوس یې رګ رګ کې ځان خور کړه

وریښمین کاڼي

عبدالرحمان غضري

تو ده وینه شه دمینې
له احساسه یې رنګ واخله
چې درنګ دونیادې کورشي
دلیموژبه یې زده کړه
چې سندرې دې یوشورشي
له خندانه راګوښه شه
چې له ځان سره اشناشې
چې دځان په ماناپوه شې
چې په ځان کې محتواشې

ساجرسعودي عرب
۲۰۰۲/۱/۵

# ژوند

ژوندفلسفه ده کنه

سرمې پرې نه خلاصیږي

دومره پوهیږمه بس

چې ژوندبې مینې ګران دی

ساجرسعودي عرب
۲۰۰۲/۱/۵

وریښمین کاڼي

عبدالرحمان غضري

## تقدیر

چې له تقدیره تښتي

په سترېیو ځان اړوي

اینه بدلیږي منم

خو تصویرنه بدلیږي

ساجر سعودي عرب

۲۰۰۶/۱/۵

## ښکلا

ښکلا د ګل غواړې
او عمر د ګل نه قبلوې
سپرلی دې خوښ
خزان ز غمولی نه شې
زه به دې سل ځلې ګل وبولمه

عبدالرحمان غضري

وریښمین کاڼي

خوګل به نه شي اشنا
څوچې ګل خویه نه شي
ساجرسعودي عرب

۲۰۰۲/۱/۲

# مسافرې شپې

مسافرې شپې مې ژاړې
ستاد یادښا پیرۍ څه شوې
کاش کې راشې
څوشیبې مې په خیالي زنګون ویده کړې
ساجرسعودي عرب

۱۲۰۰۲/۱/۸

# بانه

ستاله بڼوسره لمرنوک ونیسي
بانه دې زرزرخوځوه
چې شیبې زرتیرې شي
چې دوصال شیبې راورسیدې
بیا مې دژوند ټولې شیبې
خپلوبڼوکې قید کړه

عبدالرحمان غضري

وریښمین کاڼي

ساجرسعودي عرب

۲۰۰۲/۱/۱۰

# پړمی

کاش چې دومره څه مې زده وای
چې خپل ځان مې پرې لوستی شوای
چې خپل ځان لوستلای نه شم
څه پوهیږم چې زه څه یم
دژوندون د پیغلې خال یم
که یې داغ په سپین پړومي

ساجرسعودي عرب
۲۰۰۲/۱/۱۰

# دمستې رنګ

شیخه نن تربغض تیرشه
که په سترګوکې دې چیرې
یوه زره دمستۍ رنګ وي
په ایمان دې راته وایه
زه دشنو میو خمارکې

عبدالرحمان غضري

وریښمین کاڼي

جنتي ښکارم که څنګه
ساجر سعودي عرب
۱۳۸۵/۱/۱۵

## هغه داو ښکو څاڅکی دغه د پرخې دانه

یوه مې ستا په سره بارخو ولیده
او بله دلاله په بارخو
یوه نړۍ هغه وه
یوه دغه اشنا
دهغې لپې له جذبو ډکې وې
په کې احساس لکه سپیڅلی کتاب
په هر یوو باب کې یې دمینې داستان
هرې جلوې یې دانسان په ضمیر
یوه ناقراره شان لمحه شیندله
دد غې غیرت کې ښکلا ووډلې
ستر ګو ته رنګ ورکوي
زړه ته مستې وربښي
خیالونه ځان سره جنت ته بیا یې
څومره توپیر دی په دې دو قترو کې
هغه داو ښکو څاڅکی دغه د پرخې دانه
۱۳۸۵/۱/۲۳

## کافر ګل

چې پسرلی شي او داپوري غرونه
د شنو نښترو شنې جامې واغوندي
د نسیم ورا د ګل کاله ته راشي
او د وږمو پیغلې تنکي سهارکې

د خوش بو يې د ناوې مړه بارخوګان
د سرې غوټۍ په غيږکې
په پرخه و مينځي
زه به هم تاد کافرګل په څير
د خپل زړګي د بګړۍ ول کې کيږدم
ساجر سعودي عرب

۱۳۸۵/۲/۷

# لکه ته چې پښتنه يې

هغه شپه مې داسي خوب ليد
ريږد يد لې لکه پاڼه
د ډيوې تته رڼا نيمه په تا نيمه په وره وه
هر نفس چې به دې وويست
نرى تال بې شال ته ورکړ
کله کله به دې سترګې
زما په لورې راکږې شوې
خدايزده ولې
ويرېد لې
او که دوى هم مينه غوښته

هغه شپه مې داسي خوب ليده
ريږد بد لې لکه پاڼه
ګرمه نه وې لمړۍ شپه وه
نااشنا غوندې ماحول و
زه هم نوى ژوند هم نوى

وريښمين کاڼي

عبد الرحمان غضري

زړه خوخامخا درزيږي
دالاته وي
چې يوځل دې دمسکا جرات وکړ
هغه شپه مې داسي خوب ليد
رږد ېدلې لکه پاڼه
زړه مې غوښت چې درنيزدې شم
په بنګړو باندې دې بارشم
دليموډيوې کړم بلې ستادڅڼو په کودوکې
په بڼو ستادباړخوغولی جاروکړم
خوحيا کله پرې ښودم
زماحياهم پښتنه وه
لکه ته چې پښنه وې

ساجرسعودي عرب
۱۳۸۵/۲/۹

# دوړانګومور

عبدالرحمان غضري

وريښمين کاڼي

چې د وړانګو مورلنګیږی
ا ووړې وړې هینداړې
زموږ د شپو دانګړغولي کې
ږدی ستوري قدمونه
ښايي زه به پاته نه یم
خوزما محبوبې مینې
ورته ووایه یوڅوک و
ستا سولاره یې څارله
انتظار یې زړه اوبوکړ
اوښکه اوښکه
د تیاروپه غیږکې ورک شو

ساجر سعودي عرب
۱۳۸۵/۲/۱۱

## کاڼي

وار دې د ګل راباندی وکړ
خود کاڼي په نیت
که ګل نازک و
خود نیت کاڼی دې نه و نازک
ځکه یې ژوبل کړمه

ساجر سعودي عرب
۱۳۸۵/۲/۱۰

## چې پسرلی شي

اودغروله څوکو
دسپينوواورو ماهيان وښويږي
درې رالنګې شي اوسپينې چينې وزيږوي
اوزموږ په دښتو دشيدو لښتي خواره واره شي
زه به خپل زړه د پسرلي وږموکې وشيندمه
ترڅو دا ستړې مسافرې مرغۍ
له رنګ اوخوند سره
الفت هم حس کړې

۲۰۰۲/۲/۲۴

## رانجې

له بنجاري نه مې په سوال اوزارۍ
يو څه رانجې درته په پوروا خيستل
ماويل داځل به په خپلو لاسو
ستا په تندي درنجو خال ږدمه
چې زه راتلم ستا په تندي وولګيدلي کاڼي
د مخ کاسه دې دسرووينو له خالوډکه وه
رانجې خوتوی شو رانه
غوښت مې په اوښکو ستا تندی ومينځم
خو موردې منې کړمه
راته ويل يې ساده
خلک شهيد ته غسل نه ورکوی
ساجرسعودي عرب

عبدالرحمان غضري

وربښمين کاڼي

۲۰۰۲/۲/۲۳

# راسره ستړې به شې

راسره ستړې به شې ښکلې پيغلې
زما قسمت ستړی دی
زما خيالونه ستړي
په ما درد هم ستړی شو
راسره ستړې به شې

زما خوبونه ستړي
زما اروا ستړې ده
زه له اغازه ستړی
زما انجام ستړی دی
راسره ستړې به شې

زه اوس عادت يم پيغلې
له خپلو اوښکو سره نه ستړيږم
زما خوبونه اوس په ستړي بستر
له مانه تيښته نه کړي
زما زخمونه اوس په درد عادت دي
زما دردونه اوس له ما سره په ستړيو روږدي
خو زما نازکې ګلالۍ همځولې
په تاو يريږم ته د ستړيو نه يې
راسره ستړې به شې

ته د خندا ليونۍ
زه خپلې اوښکې څښم
زه د نغمو د غږولو نه يم

عبدالرحمان غضري

وريښمين کاڼي

زما له ګوتو څخه وینې څاڅې
رباب زما له ګوتو کرکه لري
پیغلې ماو پیژنه
راسره سترې به شې
ستا به ورېمې د پسرلي ارزوي
ته به پیکي ته زیړ ګلونه غواړې
ته به په ماکې د ناززیرمې وینې
ته به ترخپلو تور څڼو لاندی
په ما خوبونه غوړول غواړې
ته به د خپلو شنو بنګړو په شرنګ کې
له ما خوبونه تښتول غواړې
نه تیروتلې یې ته
راسره سترې به شې
زه د خزان په زړه کې توره تنده
پسرلی نه پیژنم
زه د نسیم او د شبنم په ژبه نه پوهیږم
زه له ازغونه ګلان نه شم راوړای
زما په زړه کې د نازتیغمه نه شته
زما همځولې ګلالۍ همځولې
زماله سیوري هم ځان لری ساته
راسره سترې به شې

۱۳۸۵/۲۸

عبدالرحمان غضري

وریښمین کاڼي

# ملنګه ښکلا

ای دوریښمو کروندګره پاسه

وخت د سحرپه نرګسي وږموکې

ستادملنګې ځوانۍ زړه شیندلی

دانه دانه باران دچم له کانو سروهی

او ساندی وهې

ستاپه مزارباندي یې ا یښې ده بې خوبه ککۍ

دشپوصحراکې په نمجنو سترګو

ستادراتلو ستومانه لاره څارې

اې دوریښمو کروندګره پاسه

هغه دوړانګوډنډکې

دطلایې ماهیانوخوب درپسي کډه کړیې

دویرګلانویې په زړه کې غزونې کړیې

لادا سمان دشنکی باغ دسروګلونو وږمه

دشپوشیطان په زهرجن نفس هغسی سوځي

لکه لیدله چې دې

ورېښمین کاڼي

عبدالرحمان غضري

ای دوریښمو کروندګره پاسه

زموږ په دښتو مسافرې مرغۍ

لاهم داستاد سندر یزو دانولته کوی

زرشه راپاسه چې مزلونه لري

داوزرماتې مرغۍ

له خپلوماتو وزرونو پروازونه غواړی

ای دوریښمو کروندګره پاسه

هغه ایلبندا یلبند هوسۍ سترګې دجنګ ته غواړي

هابنګړی واله توړۍ بیا راغلې

نن په ړستوني بانړونه پاکوي

دبڼو غیږ بیې درڼوا وښکوله ستورو ډکه

طالعې دې هم نه ګوري

توړۍ راغلې یوه ګیله درته کړی

داشعر دمرحوم اسحاق ننګیال په یادکې ویل شوی

ساجر سعودي عرب

۲۰۰۶/۵/۲۵

وریښمین کاڼي　　　　　　عبدالرحمان غضري

# غزل

کوچۍ دې نه بولم شپیلۍ به درته نه وایمه
عمر یې لنډ دی سره غوټۍ به درته نه وایمه

پیرزو مې نه شې د میوند په ډګر سترې تږې
ښکلې ټپه د ملالۍ به درته نه وایمه

زه چې غزل لیکم څوک ستایم ښاپیرۍ یې کړمه
ته پښتنه یې ښاپیرۍ به درته نه وایمه

خوږې خورکۍ دلویې پکتیا دلوی عظمت څلی یې
اتله وسه ګلالۍ به درته نه وایمه

سپږمۍ حسینه ده خو ستا سیرت ته چې یر ته رسي
ته ښائسته ښه یې سپږمۍ به درته نه وایمه

دا غزل دامریکا غږ اشنا راډیو کارکونکې ښائسته سعادت ته لیکل شوې

ساجر سعودي عرب

وریښمین کاڼي

عبدالرحمان غضري